

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې
هر بچی یې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی
د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو
د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، گوجر دي
پامیریان، نورستانیان
براهوي دي، قزلباش دي
هم ایماق، هم پشه یان
دا هېواد به تل ځلیږي
لکه لمر پر شنه آسمان
په سینه کې د آسیا به
لکه زړه وي جاویدان
نوم د حق مو دی رهبر
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

## د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** پښتو

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د پښتو ژبې او ادبیاتو د څانګې علمي او مسلکي غړي

**ایډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د ایډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** شپږم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

# د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیځلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# فهرست

## لومړی لوست

# حــمــد

**موخه**: د پاک الله جل جلاله ښه پېژندنه د شعر او بیتونو سم لوستل او لیکل.





**پوښتنه**:

ستاسو په فکر الله جل جلاله پرته له موږ څخه نور کوم شیان پیدا کړي دي؟

**زه مــدد غــواړم لــه تا نه اې یــوه خــدایه احــده!**
**کــه مـدد دې راســره وي چــار بــه نــه شــي زمــا بده**
**زه عاجز مریی د ستا یم تــا بــه ستایم ستا پــه فضل**
**ستــا ثــنا صفت بــه وایــم څــو زه تــوان لــرم بېحده**
**ستا ثنا ده تر حد تېره د بیابان تر شګو ډېره**
**هسې څوک دي چې خبر شي د دې شګو له عدده**
**د خــوشحــال ویل اومـه دي لایق ستا د صفـت نه دي**
**ستـا پــه فــضل بــه پخېږي دا اومــه ویـل احــده**

(خوشحال خان خټک)



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې بیتونه ولولي او هغه دې معنا کړي.
ـ دوه تنه زده کوونکي دې یو بل ته شعر د املا په توګه ووایي او ودې لیکي.
ـ زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته را شي او په مېز باندې ایښودل شوي کارتونه چې د الله ﷻ نومونه او صفتونه په کې لیکل شوي واخلي. هر یو زده کوونکی دې د خپل کارت کلمه پر تختې ولیکي او هغې ته دې یوه جمله جوړه کړي.
ـ څو تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د ژمي د رخصتیو په اړه دې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| مدد | مرسته |
| مریی | غلام |
| احد | یو (واحد) |
| ستایم | ستاینه کوم |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په دې فکر وکړي چې الله ﷻ پرته له مور څخه نور کوم شیان پیدا کړي دي په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.

## دویم لوست

# حضرت محمد ﷺ

**موخه**: د حضرت محمد ﷺ د لوړ شخصیت ښه پېژندنه، د متن سم لوستل او لیکل.





**پوښتنه**:

تاسو د حضرت محمد ﷺ د شخصیت په اړه څه ویلای شئ؟

**حضرت محمد ﷺ د الله ﷻ وروستی او هغه پیغمبر دی چې لوی الله ﷻ ورته د نېکو او غوره اخلاقو لرونکی ویلی دی.**

**حضرت رسول اکرم ﷺ په داسې حالاتو کې په پیغمبرۍ مبعوث شو چې د نړۍ پر مخ د کفر، ظلم، وحشت، شرک او بت پرستۍ توره تیاره خوره وه. د الله ﷻ د عبادت پر ځای یې د لمر، سپوږمۍ، اور او په خپل لاس جوړ شوو بتانو عبادت کاوه.**

**حلال او حرام یې نه پېژندل، بشریت په خپلو بې لاریو او ناروا وو کې په خپل سر روان و. په دې وخت کې چې انسانیت له لویې تباهۍ او بدبختۍ سره**

**مخامخ و. لوی الله ﷻ په ټول بشریت رحم وکړ او دوی ته یې د حقې لارې د ښوونې لپاره خپل ګران پیغمبر حضرت محمد ﷺ راولیږه، خپل کتاب یې پرې نازله کړ چې د ځمکې پر مخ ټولو اوسېدونکو ته سمه لاره وښيي.**
**حقیقي معبود وروپېژني او انسان له دینوي او اخروي بدمرغیو څخه وژغوري.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې متن ولولي او د مفهوم په هکله دې له یو بل سره مشوره وکړي.
ـ زده کوونکي دې په وار سره د تختې مختې ته راشي، د متن یوه، یوه کرښه دې یو بل ته املا ووايي.
ـ زده کوونکي دې په متن کې درې توریزې او څلورتوریزې کلمې پیدا بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.
ـ زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د حضرت محمد ﷺ د لوړ شخصیت او نېکو اخلاقو په اړه خبرې وړکړي.
ـ زده کوونکي دې د متن لغتونه معنا او بیا دې د تختې پر مخ ورته جملې جوړې کړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| غوره | بهتر انتخاب شوی |
| نړۍ | جهان |
| معبود | عبادت شوی، هغه چې عبادت یې کېږي |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د متن یوه برخه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# پوهنه

**موخه**: زده کوونکي متن سم ولوستلای او ولیکلای شي او د پوهنې په معنا او ارزښت وپوهېږي.






**پوښتنې**:

ـ تاسو پوهېږئ چې پوهنه څه ته وايي؟
ـ ستاسو په فکر موږ څنګه کولای شو چې د پوهې خاوندان شو؟

**علم د پوهې او پېژندنې په معنا ده. پوهنه د يوې رڼا په څېر د انسان زړه او دماغ روښانه کوي. انسان له بې لارۍ او مايوسۍ څخه ژغوري او خپلې موخې ته يې د رسېدو لارې چارې برابروي. له بلې خوا ناپوهي داسې تياره ده چې انسان له ډار، خطر او خوارۍ سره مخامخ کوي.**

**الله تعالی ﷻ په خپله د پوه او ناپوه ترمنځ د توپير په هکله داسې فرمايي: ((آيا هغه کسان چې پوهېږي، له هغو کسانو سره چې نه پوهېږي، برابر دي؟))**

**هېڅکله پوهه او ناپوهي ـ رڼا او تياره سره برابر نه دي.**

**انسان د علم او پوهې په وسيله لومړی خپل ځان او بيا خپل خالق ﷻ پېژني. په کار ده چې له علم سره د انسان عمل هم ملګری وي، همدا ډول له علم او پوهې څخه بايد د انسانانو د هوساينې او سوکالۍ لپاره کار واخلو. د خپلو خلکو او د بشر د نېکمرغيو لپاره هلې ځلې وکړو.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې متن له خپل ځان سره ولولي او د هغه مطلب دې په ساده کلمو کې څرګند کړي.

ـ زده کوونکي دې دا لاندې لغتونه تر معنا کولو وروسته په جملو کې وکاروي.

(پوهه، علم، رڼا، سوکالي)

ـ زده کوونکي دې د لاندینیو جملو پاتې برخې بشپړې او بیا دې په کتابچو کې ولیکي.

الف: د علم او پوهې په وسیله لومړی خپل ځان او بیا ............................ .

ب: د علم او پوهې څخه باید............................ ............................ .

ج: آیا هغه کسان چې پوهیږي،.................................................... .))

د: پوهنه د یوې رڼا په څېر د انسان زړه .................................... .

ـ زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او ودې وایي چې کوم پرمختګونه د علم له برکته منځ ته راغلي دي؟

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| هلې ځلې | هڅې او کوښښ |
| هوسایي | آرامي |
| سوکالي | اسوده ګي |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د علم د ارزښت او ګټو په اړه یوه لنډه مقاله ولیکي.

# ځان پېژندنه

**موخه**: زده کوونکي د ځان پېژندنې په معنا او مطلب وپوهېږي، متن سم ولوستلای او ولیکلای شي.



**پوښتنه**:

تا سو په دې مطلب پوهېږئ چې ځان پېژندنه څه معنا لري؟

**سترګې پرانیزه! د بدبینۍ حس له مغزو څخه وباسه! په ځیرځیر وګوره! طبیعت ټول تا ته په خندا د ژوندانه د هوساینې اسباب راغونډوي. د وطن د ورو او زړو د امېد سترګې ستا خواته کږې دي، ځکه چې ته د دوی او دوی ستا دي. د کوچنیوالي لوبې کوچنیانو ته پرېږده. د زلمیتوب بې ځایه عیشونه او هوسونه هغه چا ته وړاندې کړه چې ته یې پېښې کوې.**

**ته د خپلو بېوزلو کاریګرو سره لیچې ونغاړه. له بزګرانو سره لاسونه تړاکې کړه. له زده کوونکو سره ماغزه په کار واچوه. د وطن د پرمختګ لپاره زیار وباسه. پرېږده! چې نور په هوا الوزي ته بې وزرو الوتی نشې.**

**ځان وپېژنه، په تشو خبرو هېڅ نه ترسره کېږي. عملي میدان ته راووځه! دا خاوره ستا همت ته ګوري. کار غواړي. له بې غمۍ او استراحت سره وداع وکړه. خوب دګور مړو ته پرېږده! ته خو ژوندی یې. د هېواد راتلونکی سعادت په تا پورې اړه لري. د زلمیتوب طلایي ورځې په همدې خدمت کې تېرې کړه. سر تر پایه د پښو کولو په جامو کې ځان مه نغاړه! د دې وخت دی چې ځانته ووایې: آه لا ترڅو!؟ ځان و پېژنه! داسې کار وکړه چې نور ستا پېښې وکړي، لکه پخوا چې یې کاوه.**

**(ګل پاچا الفت)**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي. هره ډله دې د متن په يوې ټاکلې برخې خبرې وکړي.
ـ دوه، دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، يو تن دې د متن يوه جمله د املا په توګه ووايي او بل دې وليکي.
ـ زده کوونکي دې لاندې لغتونه په جملو کې وکاروي او بيا دې په خپلو کتابچو کې وليکي.
(سعادت، راتلونکی، زلمیتوب، هېواد، همت)
ـ زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او په دې اړه دې خبرې وکړي چې د خپل هېواد د پرمختګ لپاره بايد څه وکړي؟

| لغتونه | معناوې | لغتونه | معناوې |
|---|---|---|---|
| امېد | هیله | تقليد | پيښنې کول |
| لېږچې ونغاړه | لستوني راپورته کړه | مه نغاړه | مه تاووه |
| وداع | خدای په اماني | سعادت | نېکمرغي |

گل پاچا الفت د مير سيد پاچا زوی، په ۱۲۸۸ لمريز کال د لغمان د عزيز خان په کڅ کې زېږېدلی. يو ډېر لوړ ليکوال، شاعر او نقاد و. په لسګونو آثار يې ليکلي چې ځينې مهم آثار يې دادي: د پسرلي نغمه، عالي افکار، د آزادۍ پيغام، غوره اشعار، د زړه وينا او نور.
پورته متن هم دده له غوره نثرونو څخه انتخاب شوی دی.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې فکر وکړي چې ځان پېژندنه څه معنا لري بيا دې په همدې اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکي.

## پنځم لوست

# غږونه

**موخه**: زده کوونکي متن سم ولوستلای او ولیکلای شي، غږونه وپېژني او په کارولو یې وپوهېږي.









**پوښتنه**:

تاسو څه فکر کوئ چې غږونه هم په ژبه کې ارزښت لري؟

د شلمې پېړۍ په پیل کې نوو علمي څېړنو دا ثابته کړه چې غږونه د یوې ژبې اساس او بنسټ جوړوي، نو ویلای شو چې غږونه د ژبې جوړوونکي توکي دي. که څه هم دغه توکي په یوازې توگه معنا نه لري، خو توپیر یې په کلمو کې، د کلمو معنا بدلوي، لکه: د (ت) آواز د (تور) په کلمه کې. که چېرې د دغه آواز په ځای د (پ) آواز راوړو، نو د (تور) له کلمې څخه د (پور) کلمه جوړېږي چې دا دوه بېلې بېلې کلمې دي. غږونه په ژبه کې په یوازې او جلا جلا توگه نه کارول کېږي، بلکې د هغو له یو ځای کېدو څخه تر ټولو کوچنۍ معنا داره واحدونه جوړېږي چې کلمه ورته وايي.

په هره ژبه کې الفبې د هغې ژبې ټولو تورو ته ویل کېږي چې د هغې ژبې د آوازونو انځورونه کوي.



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې متن ولولي او د هغه په هکله دې خبرې وکړي.

ـ دا برخه دې د متن په لوستلو سره بشپړه او په کتابچو کې دې ولیکي.

- د شلمې پېړۍ نوو علمي څېړنو دا ثابته کړه چې ...............................
- غړونه په د ژبې جوړونکي ...............................
- غړونه په ژبه کې په یوازې ...............................

ـ زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي په دې اړه دې خبرې وکړي چې: غړونه ولې د ژبې جوړوونکي توکي دي؟

ـ زده کوونکي دې د غړونو لاندنی تعریف له یاده زده کړي:

ـ غړونه د هرې ژبې جوړوونکي توکي دي چې په یوازې توګه معنا نه لري او له یو ځای کېدو څخه یې کلمې جوړیږي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| توکي | اجزا |
| توپیر | فرق |
| څېړنه | تحقیق |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکې دې څو کلمې پیدا کړي چې د غړونو په بدلېدو یې په معنا کې بدلون راځي.

لکه: تور، نور بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# آریایان

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د آریایانو پېژندل.



**پوښتنه**:

آیا تاسو د آریایانو کلمه اویا د هغو په هکله څه اورېدلي دي؟

**له میلاد څخه په زرګونو کلونو مخکې د اوسني افغانستان په شمال کې آریایي قومونه اوسېدل. دوی خپل ټاټوبي ته آریاناوېجه ویله چې د اصیلانو او شریفو خلکو د استوګنې د ځای معنا لري. آریایان په لومړي سر کې په یوه ژبه چې آرییک نومېده غږېدل او دا د پښتو ژبې اصلي مور ګڼل شوې ده.**

**آریایانو په آریاناوېجه کې د کوچیتوب او مالدارۍ ژوند درلود، خو زرګونه کلونه وروسته یې ښاري ژوند پیل او د لومړي ځل لپاره یې د بُخدي ښار جوړ کړ. (یما) پاچا د آریایي دولت اداره په غاړه درلوده. دا زمانه له میلاد څخه (۱۵۰۰) کاله د مخه اټکل شوې ده.**

**له زرګونو کلونو څخه وروسته آریایان د زیاتوالي له امله د افغانستان نورو سیمو ته وکوچېدل، او د هېواد په مرکزي، ختیځو او لویدیځو برخو کې خپاره او مېشته شول.**

**له ډېرې مودې وروسته دوی بیا د وګړو د شمېر د زیاتوالي له امله د افغانستان نورو سیموته وکوچېدل چې لوېدیځ خوا تر ایران او ختیځ خوا ته د هند تر ځنګلونو پورې ورسېدل. آریایانو له خپل ځان سره وړی تمدن هلته خپور او ښه وده یې ورکړه.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې په وار سره متن ولولي او بیا دې یو بل ته د هغه په هکله مشوره وکړي.

ـ دا لاندې لغتونه دې په مناسبو جملو کې راوړي او په کتابچو کې دې ولیکې.

الف: ټاټوبي ب: ختیځ ج: آرییک د: بُخدي

ـ د جملو تش ځایونه دې د متن له لوستلو وروسته په مناسبو کلمو ډک او بیا دې ولیکي.

- آریایانو په یوه ژبه خبرې کولې چې ..............................
- آریایانو په آریانا ویجه کې د کوچیتوب او ..........................
- د آریایانو لومړنی پاچا ..............................

ـ زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او د لومړي جوړ شوي ښار په هکله دې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| ټاټوبی | د اوسېدو ځای |
| ویجه | ټاټوبی |
| بُخدي | اوسنی بلخ چې اُم البلاد هم نومېده. |
| اټکل | ګومان |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د دغو کلمو په هکله یوه یوه جمله ولیکي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکې. (اُم البلاد، آرییک، آریانا ویجه، یما پاچا)

## اووم لوست

# کتاب

**موخه**: د متن لوستل، لیکل او زده کوونکي په دې وپوهېږي چې کتاب څنګه منځ ته راغلی دی؟





**پوښتنه**:

تاسو څه فکر کوئ چې پخوا زمانو کې به هم کتاب موجود و؟

په ډېرو پخوا زمانو کې کتاب نه و. زموږ نیکونو او پلرونو به کیسې په یاد زده کولې دا کیسې پېړۍ، پېړۍ نورو نسلونو ته رسېدلې دي، څرنګه چې دا کیسې به یې ټولې په یاد نه پاتې کېدې، نو دوی په دې فکر کې شول چې د کیسو د ساتلو لپاره په لرګیو کې ځینې نښې نښانې وکړي.

وروسته په دې هم و پوهېدل چې د تېره لرګي په څوکه پر نرمه خټه باندې یوه نښه وباسي او په اور یې پخه کړي، ترڅو ډېر عمر پاتې شي چې همدا کار په حقیقت کې د کتاب د منځ ته راتلو پیل و.

تر دې وروسته انسانان د ونو د پوټکو او پاڼو په تېره بیا د پاپیروس د بوټي په پاڼو د لیکلو په فکر کې شول چې څه نا څه تر ډېرې مودې پورې یې پایښت درلود.

مصریانو کم تر کمه (۵۰۰۰) کاله پخوا د پاپیروس د بوټي له پاڼو څخه یو ډول کاغذ جوړ کړ. کله چې و پوهېدل هغه له منځه ځي، نو د هغه په ځای یې د ژوو پوستکي د لیکلو لپاره غوره کړل.

**دغوکتابونو یوازې په مالدارو خلکو پورې اړه درلوده. د زرګونو کلونو وروسته بیا په چین کې د اوسني کاغذ ډېر ابتدایي شکل منځ ته راغی. ورپسې په جرمني کې د چاپ ماشین اختراع شو چې دکتاب د منځته راتلو لپاره سمه لاره پرانیستل شوه.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې متن ولولي او د هغه په هکله دې معلومات وړاندې کړي.

ـ د جملو نیمګړې برخې دې په مناسبو کلمو سره بشپړې او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.

مصریانو تقریباً پنځه زره کاله پخوا ............................ جوړ کړ.

د اوسني کاغذ ډېر ابتدایي ................................ منځ ته راغی.

په جرمني کې د .................. اختراع شو چې د .................. .

ـ یو یو زده کوونکی دې د متن لغتونه پرتختې ولیکي او بیا دې په جملو کې راوړي.

ـ څو تنه زده کوونکي دې په دې اړه د ټولګي مخکې خبرې وکړي چې دوی ولې د لیکلو لپاره د پاپیروس د بوټي په فکر کې شول؟

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| پېړۍ | قرن |
| پرانیستل | خلاصول |
| ژوو | حیوانات |
| اختراع | د یوه نوي شي منځ ته راوړل |

پاپېروس د اوقیانوس د دریاب په غاړه د پلنو پاڼو درلودونکی بوټی و.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په دې اړه چې د کتاب منځ ته راتلل کومې مرحلې تېرې کړي، څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# حضرت علي کرم الله وجهه

**موخه**: د متن لوستل، لیکل او د حضرت علي (کرم الله وجهه) د شخصیت پېژندنه.






**پوښتنه**:

آیا تاسو د حضرت علي کرم الله وجهه په هکله څه ویلای شئ؟

حضرت علي کرم الله وجههُ د اسلام لوی سپه سالار او د ابو طالب زوی و. له هجرت څخه یوویشت کاله مخکې په مکې معظمې کې زېږېدلی او د حضرت محمدﷺ څلورم یار و.

حضرت علي کرم الله وجههُ له وړکتوب څخه، حضرت محمدﷺ سره مینه درلوده او د هغه د اخلاقو پیروي یې کوله. حضرت علي (کرم الله وجهه) لومړنی کوچنی ماشوم و چې ایمان یې ور باندې راوړ او د اسلام په مبارک دین مشرف شو.

حضرت علي (کرم الله وجهه) ته ځکه د کرم الله وجهه لقب ورکړل شوی چې بتانو ته یې سجده نه ده کړې. حضرت علي (کرم الله وجهه) ډېر لوی عالم، غښتلی، زړور او د نیکو اخلاقو خاوند و.

**کوم وخت چې حضرت عثمان رضي الله عنه په شهادت ورسېد. حضرت علي رضي الله عنه د مسلمانانو خلیفه شو. د خلافت په موده کې يې ډېر فتوحات وکړل.**

**څلور کاله او څو میاشتې يې خلافت وکړ. په پای کې د عبدالرحمن بن مُلجم له خوا د هجرت په څلوېښتم کال د روژې په اووه لسمه ورځ د کوفې په ښار کې په شهادت ورسېد.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې متن ولولي او د هغه په مطلب دې خبرې وکړي.

ـ د حضرت علي رضي الله عنه په هکله اورېدلې کیسې دې نوروته د ټولګي په مخکې ووايي.

ـ دا لاندې پوښتنې دې ولولي او د هغو پر ځوابونو دې له یو بل سره مشوره وکړي.

- حضرت علي رضي الله عنه د چا زوی او څه وخت د اسلام په دین مشرف شو؟
- حضرت علي رضي الله عنه په کوم کال کې زېږېدلی دی؟
- حضرت علي رضي الله عنه د چا له خوا او په کوم کال کې په شهادت ورسېد؟

ـ زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او د حضرت علي کرم الله وجهه په هکله دې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| غښتلی | قوي |
| سپه سالار | سرلښکر |
| پیروي | اطاعت، په چا پسې تلنه |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکې دې په دې هکله چې ولې حضرت علي ته د کرم الله وجهه لقب ورکړ شوی. معلومات په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# کلمه

**موخه**: په لیکلو او لوستلو کې د کلمو سم کارول او د کلمې په معنا او مفهوم پوهېدل.






**پوښتنه**:

آیا تاسو د کلمې په هکله څه اورېدلي او پوهېږئ چې کلمه څه ته وایي؟

**کلمې: هغه کوچني ژبني توکي دي چې ځیني یې په خپله معنا لري او ځیني یې په یوازې توګه معنا نه ورکوي، خو د جملو د معناوو په بشپړولو کې لویه ونډه اخلي. کلمې د معنا له مخې په دوو برخو وېشل شوي: خپلواکې او ناخپلواکې کلمې.**

### خپلواکې کلمې

**هغه کلمې چې په خپله معنا ولري او په هغوی کې نومونه، قیدونه، صفتونه او فعلونه راځي، لکه: احمد، زه، ښه، لایق، راغی او نور....**

### ناخپلواکې کلمې

**هغه کلمې دي چې په خپلواکه توګه معنا نه لري، خو له خپلواکو کلمو سره له یو ځای کېدو وروسته د جملې معنا بشپړوي، لکه: و، به، له، د، نه، سره، څخه، ځینې، او نور....**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې متن ولولي او د هغه په معنا او مفهوم دې خبرې وکړي.

ـ یو یو زده کوونکی دې لاندې کلمې پر تختې ولیکي او بیا دې په جملو کې وکاروي.

بشپړ، ونډه، لایق

ـ زده کوونکې دې متن ولولي او د هغه په مرسته دې لاندې برخې بشپړې کړي:

- کلمې هغه کوچني ژبني توکي دي چې ..............................
- کلمه په دوو برخو وېشل شوې چې ..............................
- په خپلواکو کلمو کې دا برخې شاملې دي ..............................

ـ زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او د ژبې د کوچنیو توکو په هکله دې خبرې وکړي.

## لغتونه

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| ونډه | برخه |
| بشپړ | پوره |
| توکي | اجزا |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د خپلواکو او ناخپلواکو کلمو د توپیر په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# اسم (نوم)

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او په خپلواکو کلمو کې د نوم پېژندنه.






**پوښتنه**:

ستاسو په فکر نوم په خپلواکو کلمو کې راتلای شي؟

**اسم (نوم)**: **هغه خپلواکه کلمه ده چې د ټولو شیانو او اشخاصو لپاره کارول کیږي، لکه: احمد، وحیده، میز، عقل، دود، اکسیجن، شېدې، ونه او نور...**

**د نوم ډولونه**:

**نوم دا ډولونه لري: ساده یا مفرد نوم، مرکب نوم، خاص نوم، عام نوم، معنا نوم، ذات نوم او نور...**

**له دې جملې څخه به ځینې نومونه له مثالونو سره وګورو:**

**ساده یا مفرد نوم**: **هغه نوم ته وايي چې له یوې مفردې کلمې څخه جوړ شوی وي، لکه: کور، لاس، کتاب، قلم...**

**مرکب نوم**: **هغه نوم دی چې له دوو یا زیاتو کلمو څخه جوړ شوی وي. لکه: افغانستان، پوهنتون، عبدالله...**

**خاص نوم**: هغه کلمه ده چې په یوه خاص شي یا سړي باندې دلالت وکړي، لکه: **احمدشاه بابا، کابل، پغمان، غازي امان الله خان او نور.**

**عام نوم**: هغه نوم دی چې په خپلو همجنسو شیانو یا اشخاصو دلالت وکړي، لکه: **سړی، نجلۍ، ښار، ښوونځی او نور.**



**فعالیتونه**:

ـ زده کوونکي دې په دوه کسیزه توګه متن ولولي او یو بل ته دې تشریح کړي.
ـ زده کوونکي دې په خپل ټولګي کې د شیانو نومونه په یوه لست کې ولیکي او په هغو کې دې د نوم ډولونه وښیي، لکه: مېز (عام نوم)، کتاب (عام نوم)، هلك (عام نوم)، حمید (مفرد نوم) زموږ د تاریخ استاد عبدالله (خاص نوم)، حمیدالله (مرکب نوم).
ـ زده کوونکي دې متن ولولي نومونه دې پکې پیدا او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.
ـ زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د نومونو ډولونه دې پر تختې ولیکي او بیا دې د هغو د توپیر په هکله خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| خاص | ځانګړی |
| ځینې | بعضې |



**کورنۍ دنده**:

زده کوونکي دې د نومونو لپاره نوي نوي مثالونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# امیر کروړ

**موخه**: د متن لوستل، لیکل او د لومړني شاعر په توګه د امیر کروړ پېژندنه.





**پوښتنه**:

آیا تاسو د امیر کروړ نوم اورېدلی او په دې برخه کې څه ویلای شئ؟

**امیر کروړ د امیر فولاد سوري زوی و. په (۱۳۹هـ.ق.) د غور په مندېش کې امیر شو. دی داسې غښتلی او پهلوان و چې له سلو تنو جنګیالیو سره به جنګېده، نو ځکه یې کروړ باله چې معنا یې کلک او غښتلی دی.**

**امیر کروړ ډېر عادل، مهربان او د ټینګې ارادې خښتن و. ښه وینا یې درلوده. په شعرونو کې یې سوچه او سپیڅلې پښتو کلمې کار ولې دي.**

**امیر کروړ د عباسیانو په پلوی له بني اُمیه وو سره ډېرې جګړې وکړې چې زیاتې سوبې یې پې په برخه شوې. د هغو په ویاړ یې دا شعرونه وویل چې ویاړنه یې بولي او د پښتو شعرونو په لړ کې لوړه حماسي ترانه ده.**

**د تاریخي سندونو له مخې دا شعر لومړنی شعر بلل شوی، ځکه چې مخکې له دې څخه کوم بل شعري سند نه لرو. خو د دغه شعر له پوخوالي څخه څرګندېږي چې له دې شعر څخه پخوا به هم نورو شاعرانو شعرونه ویلي وي، ځکه چې لومړني شعر ته ډېر وخت په کار دی. ترڅو دغسې**

**پوخوالي ته ورسېږي. امير کروړ په (۱۵۴هـ.ق.) کال د پوشنګ په جګړو کې مړ شو. د ده حماسي ترانه داسې پیل کېږي:**

**زه یم زمری پردې نړۍ له ما اتل نشــته　　　په هند و سند و په تخار و په کابل نشته**

**بل په زابل نشــته له ما اتل نشــته**



**فعالیتونه:**

ـ زده کوونکي دې متن ولولي او د هغه مطلب دې په لنډه توګه ووايي.

ـ زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې په دې اړه مشوره وکړي چې:

- ولې د امير کروړ شعر ته لومړنی شعر نشو ویلای؟

بیا دې له هرې ډلې څخه یو تن د تختې مخې ته راشي او خپله لیکل شوې پاڼه دې نورو ته ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې د متن لغتونه د تختې پر مخ ولیکي او نور دې په جملو کې وکاروي. (کروړ، ویاړ، مهربان، سوبه، پهلوان، غښتلی، ویاړنه)

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| کروړ | سخت |
| غښتلی | قوي، توانمن |
| ویاړنه | فخرکول |
| سوبه | فتح |
| ویاړ | افتخار |
| اتل | قهرمان |



**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د لاندې مطلب په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

امير کروړ خپله حماسي ترانه د څه شي په ویاړ ویلې ده؟

# متلونه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د متلونو په مناسب ځای او سموکارولو پوهېدل.






**پوښتنه**:

آیا تاسو متلونه اورېدلي او د هغو په مطلب پوهېږئ؟

**متلونه د پښتوژبې په ولسي ادب کې یوه غوره او په زړه پورې برخه ده.**
**متلونه هغه لنډې وینا وې دي چې ډېر لوی او پراخ مطالب په کې ځای شوی وي.**

**د متلونو ویوونکي معلوم نه دي. په هره زمانه کې ویل شوي. د ملتونو په وسیلې د ټولنې دودونه او د خلکو افکار له یوه نسل څخه بل نسل ته لېږدول کیږي. دمتلونو اغېزه په ژبه کې دومره زیاته ده چې په خبرو اترو کې یې د یوه ټینګ استدلال په توګه راوړي.**

**دا برخه په پښتو ادب کې ډېره شتمنه ده چې شمېر یې زرګونو ته رسېږي. ځینې متلونه به د مثال په توګه ولولو:**

**کبرجن د الله ﷻ دښمن دی.**
**په یوه څپېړه سل مخه خوږېږي.**
**خپل عیب د ولو منځ، د بل عیب د کلو منځ دی.**

**په سوال کولو خوله هم بده ښکاري.**
**بد خوی چې زورور شي نو عقل مرور شي.**
**کېږدۍ په خپلو مراندو ولاړه ده.**
**بې مېوې ونه څوک په کاڼو نه ولي.**
**گل له گل نه رنگ اخلي.**



### فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې متن ولولي او د متلونو په هکله دې خبرې وکړي.
ـ زده کوونکي دې متلونه د املا په توگه ولیکي.
ـ یو یو زده کوونکی دې د ټولگي مخې ته راشي او کوم متل یې چې زده وي، د هغه په مطلب دې خبرې وکړي.
ـ زده کوونکي دې د متن لغتونه، په جملو کې وکاروي او له یو بل څخه دې وپوښتي.

| لغتونه | معناوي |
|---|---|
| ولی | اوره |
| مراندو | د خیمې یا کېږدۍ نوی پړی |
| استدلال | دلیل راوړل |
| شمېر | حساب |
| شتمنه | بډایه |
| اغېزه | تاثیر |



### کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې ددې متل «کوږ بار تر منزله نه رسېږي» مفهوم په خپله ژبه ولیکي.

# پټه خزانه

**موخه**: د متن لوستل، لیکل او د پټې خزانې د لیکوال پېژندنه.






**پوښتنه**:

ـ تاسو د پټې خزانې په هکله څه اورېدلي دي؟

**پټه خزانه د پښتو ژبې په ادبیاتو کې یو ارزښتمن کتاب دی چې محمد هوتک په (۱۱۴۱هـ.ق.) کال په کندهار کې د شاه حسین هوتکي په هڅوونې لیکلی دی.**

**محمد هوتک په (۱۰۸۴هـ.ق.) کال د کندهار په کوکران کې زیږېدلی، د پلار نوم یې داوود خان او د نیکه نوم یې قادر خان هوتک دی. ده د خپل وخت علوم له خپل پلار څخه ولوستل. لوی عالم او پوخ شاعر شو. محمد هوتک په خپله پټه خزانه کې د پنځوسو نرینه او ښځینه شاعرانو د ژوند پېښې او د شعرونو بېلګې ذکر کړي دي. په دې ترتیب یې له سل تر یوولس سوه هجري کلونو پورې د پښتو د شعر او ادب تاریخ خوندي ساتلی دی.**

**محمد هوتک نور کتابونه هم لیکلي چې خلاصة الفصاحت او خلاصة الطب نومېږي او د شعرونو یو ښکلی دیوان هم لري چې بوللې او غزلې یې په کې راوړي دي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې دوه دوه تنه متن ولولي او یو بل ته دې مطلب  ووایي.

ـ زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې مشوره وکړي چې:

- په پټې خزانې کې کوم تاریخي شیان خوندي ساتل شوي دي؟

بیا دې له هرې ډلې څخه یو تن د ټولګي مخې ته راشي او خپله پاڼه دې نورو ته ولولي.

ـ زده کوونکي دې د متن جملې یو بل ته املا ووایي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.

ـ زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د محمد هوتک د کتابونو په هکله دې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| خوندي | ساتل شوي، محفوظ |
| پېښې | واقعې |
| هڅوونه | تشویقول |
| بوللې | قصیدې |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د پټې خزانې د ارزښت په اړه څو جملې په کتابچو کې ولیکي.

# مطالعه

**موخه**: د متن سم لوستل، سم لیکل، د مطالعې په ارزښت او ګټو پوهیدل او په زده کوونکو کې د مطالعې د روحیې پیاوړتیا.





**پوښتنه**:

څه فکر کوئ چې مطالعه څه ګټې لري؟

**مطالعه داسې کړنه ده چې د انسان له سترګو او مغزو څخه د ناپوهۍ پردې لرې کوي. انسان دې ته هڅوي چې باید د علم او پوهې څښتن شي.**

**مطالعه انسان علم او کمال ته رسوي. دماغي ځواک ته یې وده او پراختیا ورکوي، تر څو انسان وکولای شي د ښو او بدو ترمنځ د توپیر په پوهېدو سره د دنیا او آخرت د ښه والي لپاره زیار وباسي.**

**همدا راز مطالعه انسان د خپل ژوند له ټولو مسؤولیتونو څخه خبروي. هغه ته دا لارښوونه کوي چې انسان ډېر مسوولیتونه لري، باید په هغو پوه شي او هغه وپېژني.**

**د مطالعې لپاره باید د کتاب په ټاکلو کې ډېر پام وکړو. هغه کتاب انتخاب**

**کړو چې موږ ته د ژوند سمه لارښوونه وکړي. هر څوک چې ډېره مطالعه وکړي او ډېر کتابونه ولولي ذهن يې پراخ او معلومات يې ډېرېږي.**



**فعاليتونه:**

ـ زده کوونکي دې متن ولولي او د هغه په مطلب دې خبرې وکړي.

ـ زده کوونکي دې د مطالعې متن يو بل ته املا ووايي.

ـ زده کوونکي دې د لاندې جملو تش ځايونه په مناسبو کلمو سره بشپړ او په کتابچو کې وليکي.

- مطالعه د انسان له سترګو او مغزو څخه .....................
- مطالعه انسان دې ته هڅوي چې ښايي د .....................
- مطالعه انسان د خپل ژوند له .....................

ـ زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او ودې وايي چې مطالعه څه ډول کړنه ده.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| پراختيا | وسعت ورکول |
| ځواک | توان او قدرت |
| کړنه | عمل |



**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې په دې هکله چې مطالعه څنګه انسان علم او کمال ته رسوي څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکي.

# موږ افغانان یو!

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او په زده کوونکو کې د افغانیت د روحیې پیاوړتیا.





**پوښتنه:**

ستاسو په فکر (موږ افغانان یو) څه مفهوم او ارزښت لري؟

**زموږ د هېواد د اساسي قانون له مخې د افغانستان د ملت وګړي له پښتون، تاجک، هزاره، ازبک، ترکمن، بلوڅ، پشه یي، نورستان، ایماق، عرب، قزلباش، ګوجر، براهوي او نورو قومونو څخه عبارت دي.**

**د افغان کلمه د افغانستان د ملت هر وګړي ته ویل کېږي.**

**له دې امله ټولو ته لازمه ده چې:**

- **د هېواد ملي یووالی وساتو.**
- **په ټولنه کې د ټولو منل شوو اصولو او ملي ارزښتونو درناوی وکړو.**
- **په ټولنه کې د ملي او تاریخي خلکو د کړنو پیروي وکړو.**
- **د خپل ټاټوبي د ملي شتمنیو، ویاړونو او بریاوو ښه ساتونکي او پالونکي واوسو.**
- **د ټولنې د خیر، پرمختګ او ښېګڼې په چارو کې ونډه واخلو.**
- **د خپل کور، کلي، سیمې او چاپېریال له ساتلو او پاکۍ سره د زړه له تله مینه**

ولرو.

- کوچنيانو ته د ژوند په چارو کې سالمې لارښوونې او ګټورې مشورې ورکړو.
- په ورځيني ژوند کې د ميندو او خويندو خواخوږي او مرستندويان واوسو.
- تل په کوچنيانو شفقت او د مشرانو درناوی وکړو.



**فعاليتونه:**

ـ زده کوونکي دې متن ولولي او د هغه مطلب دې په لنډه توګه ووايي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن لغتونه معنا او د تختې پرمخ دې په جملو کې وکاروي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او په هغه څه چې له افغان او افغانيت سره ښايي خبرې وکړي.

ـ زده کوونکي دې د متن جملې يو بل ته املا ووايي او بيا دې اصلاح کړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| ټولنه | جامعه |
| ټاټوبی | د اوسېدو ځای |
| شتمني | دارايي |
| وياړونه | افتخارونه |



**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې په دې اړه (مور د يوه افغان په صفت بايد څه وکړو) څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکي.

# سوله او ژوند

**موخه**: د متن لوستل، لیکل، په ژوند کې د سولې په ارزښت او اړتیا پوهېدل او د سولې غوښتلو د روحیې پیاوړتیا.






**پوښتنه**:

ستاسو په فکر موږ ولې په ژوند کې سولې ته اړتیا لرو؟

**سوله یوه ډېره مقدسه او سپېڅلې کلمه ده، ځکه په قرآن کریم کې یې ستاینه شوې ده او هغه (والصلح خیر) بللې ده. د بشریت هستي، پایښت او سوکالي هم په سولې پورې اړه لري.**

**په سولې کې ژوند کول د هر انسان حق دی. سوله د خلکو زړونه سره نژدې کوي. خوښي او نېکمرغي راولي. که د بشري نړۍ په هر ځای کې سوله او امن نه وي، نو هلته به جګړه برلاسې وي. جنګ او جګړه له ځان سره انسانانو ته له وژلو، ورانولو او تباهۍ پرته بل څه نه راوړي.**

**د تاریخ له پاڼو څخه څرګندېږي، هغو خلکو چې په خپلو کې او یا هم له نورو سره د سوله ییز ژوند لاره غوره کړې، ډېر ژر د سوکاله او هوسا ژوند خاوندان ګرځېدلي او د ترقۍ او پرمختګ له کاروان سره یو ځای شوي دي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې متن ولولي او دهغه په اړه دې خبرې وکړي.
ـ زده کوونکي دې دوه، دوه تنه متن ولولي. بیا دې یو بل ته املا ووایي.
ـ زده کوونکي دې دا لاندې لغتونه وروسته تر معنا، په جملو کې وکار وي او په کتابچو کې دې ولیکي.
(سپېڅلې، پایښت، سوکالي، هوسا)
ـ زده کوونکي دې په وارسره د ټولګي مخې ته راشي او د سولې د اړتیا او ګټو په هکله دې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوي |
|---|---|
| سپېڅلی | پاک |
| پایښت | بقا او دوام |
| هوسا | آرامه |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په دې اړه په خپلو کتابچو کې په لنډه توګه ولیکي چې: موږ په سوله ییز ژوند کې کوم ګټور کارونه سرته رسولی شو.

# وزیر محمد اکبرخان

**موخه**: د متن لوستل، لیکل او د وزیر محمد اکبر خان د شخصیت پېژندنه.





**پوښتنه**:

تاسو د وزیر محمد اکبر خان دکارنامو په هکله څه اورېدلي او هغه پېژنئ؟

زموږ په هېواد کې ډېر نوميالي غازيان او اتلان تېر شوي. له هغو څخه يو هم وزير محمد اکبرخان دی. وزير محمداکبرخان د امير دوست محمدخان زوی او په ۱۲۳۲هـ.ق. کال کې زېږېدلی و.

غازي محمد اکبر خان د افغان او انګلیس په لومړۍ جګړه کې له افغاني غازيانو سره يو ځای د هېواد په آزادولو کې ډېره لويه ونډه اخيستې وه.

وزير محمداکبرخان د ډېرو ښو اخلاقو څښتن و. پر بېوزلو زړه سواند او د ظالمانو او تېري کوونکو سخت مخالف و.

په جګړې کې د جنګي اسيرانو او نيول شوو بنديانو قدر يې د مېلمنو په شان کاوه. د هغو روغتيا او سلامتيا ته به يې پاملرنه کوله، تر دې چې د هغوی په ټپونو به يې په خپله پټۍ لګولې.

د خپل هېواد له خلکو سره يې ډېره مينه درلوده او خپلو خلکو ته له

**ډېرو خدمتونو څخه وروسته د ۳۰ کلو په عمر په ۱۲۲۲هـ.ق. کال کې وفات او د ده له سپارښتنو سره سم په مزار شریف کې خاورو ته وسپارل شو. روح دې ښاد وي.**



### فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې متن ولولي او بیا دې د هغه په مطلب خبرې وکړي.
ـ زده کوونکي دې دغو پوښتنو ته ځوابونه ووایي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.
ـ وزیر محمد اکبر خان کوم ښه صفتونه در لودل؟
ـ وزیر محمد اکبر خان د هېواد د خپلواکۍ لپاره څه ډول خدمتونه کړي دي؟
ـ د وزیر محمد اکبر خان مړینه په کوم کال پېښه شوې او مقبره یې چېرې ده؟
ـ دوه، دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو بل ته دې د متن املا ووایي او بیا دې اصلاح کړي.
ـ زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او په دې هکله دې خبرې وکړي چې د غازیانو او نومیالو په ژوند لیک پوهېدل څه ګټې لري.

| **لغتونه** | **معناوې** |
| --- | --- |
| اتلان | قهرمانان |
| ونډه | برخه |
| تېري کوونکي | ظالمان |



### کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د وزیر محمد اکبر خان د اوصافو په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# لیک نښې

**موخه**: د متن لوستل، لیکل او د لیک نښو په ارزښت او کارولو پوهېدل.






**پوښتنه**:

تاسې لیک نښې پېژنئ او کله مو په لیکنو کې کارولې دي؟

په هره ژبه کې د لیکنې د سموالي او ښه والي لپاره ځینې نښې نښانې شته چې په هره لیکنه کې یې مراعاتول ضروري دي. بې له دغو نښو څخه لیکنې سمه معنا نه ورکوي او لوستونکي له ډېرو ستونزو سره مخامخ کېږي.

اړینه ده چې لیک نښې په لنډ ډول وپېژنو:

ـ **ټکی** (.): دا نښه د بشپړې جملې په پای کې ایښودل کېږي.

لکه: بې له زیار او زحمت څخه کامیابي نشته.

ـ **کامه** (،): کامه یا چپه پېښ د یوه لنډ ځنډ لپاره راځي. همدارنګه د کلمو او جملو د بېلولو لپاره هم کارول کېږي، لکه: میرویس، اجمل، رشاد او سلیمان زیارکښ زده کوونکي دي.

ـ **شارحه** (:): شارحه یا دوه ټکي له هغو کلمو څخه وروسته راځي چې

**وروسته شرح او بیان ولري. لکه: د ژبې مهارتونه دا دي: غوږ نیول، خبرې کول، لوستل او لیکل.**

**ـ سوالیه (؟) دا نښه د پوښتنې لپاره راوړل کیږي، یعنې د هر ډول سوالیه جملو په پای کې راځي. لکه: د آریایانو لومړنۍ ژبه څه نومیده؟**

**ـ ندایه (!): دا علامه د غږ کولو یا ندا او تعجب په وخت کې کارول کیږي، لکه: لویه خدایه! ته زموږ د بیچاره ولس په حال رحم وکړې.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې متن ولولي او په مفهوم دې له یو بل سره خبرې وکړي.

ـ زده کوونکي دې دوه دوه تنه په خپلو منځو کې د لوست لغتونه په جملو کې وکاروي.

ـ زده کوونکي دې یو یو د تختې مخې ته راشي او د لیک نښو په اړه دې توضیحات ورکړي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او یوه، یوه جمله دې د هرې لیک نښې لپاره د مثال په توګه ولیکي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| ستونزې | مشکلات |
| ضروري | اړینه |
| زیار | زحمت، کوښښ |
| ندا | غږ یا آواز |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپله خوښه څو جملې ولیکي او د لوست لیک نښې دې په کې وښیي.

# غوره ويناوې

**موخه**: د متن لوستل، ليکل، د غوره ويناوو په معنا او مفهوم پوهېدل او د ژوند په چارو کې له هغو څخه پيروي کول.



**پوښتنه**:

ستاسو په فکر غوره ويناوې څه معنا او څه ته وايي؟

**چــې دانا نه کــړې گــردش د زمانــې**
**نــور به زده نه کــړې دانـش د زمانــې**
**زر پيــرې لري د ستــرگـــوپه ځنبل کــې**
**خبـــر دار شــه پـــه روش د زمانــې**
**په يوه زمــان وي شاه، بيا دې گـدای کا**
**څــــه بـــاور په نوازش د زمانـــې**
**په خزان کــې د بوستـــان په ونو راشـــه!**
**څه و، څـــه شـــو بيا پوشـش د زماني**
**کله ځمکـه سپيـــره ډاگ، کلـه گلـــونه**
**څـــه اميــــد په آرايـش د زمانـــې**
**د سفلــه غونډې يې ورکړه رانيـــول دي**
**غـــره مه شــــه پـه بخشش د زمانـــې**

چې يې شـــا کړه د دنيـا و آسايش تـه
هم هغــه کـــا آســـايش د زمانـــې
چې دا هسې يې کردې د زړه په ياد وي
لا «خوشحـــال»لري خواهـش د زمانې

(خوشحال بابا)



## فعاليتونه:

ـ زده کوونکي دې په وار سره د شعر بيتونه ولولي او د هغه په هکله دې خبرې وکړي.
ـ زده کوونکي دې دوه دوه تنه د شعر بيتونه يو بل ته املا ووايي.
ـ زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي، د متن لغتونه دې لومړى معنا بيا دې په جملو کې وکاروي.
ـ زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې په دې اړه مشوره وکړي چې په بيتونو کې د شاعر مطلب کومو ټکو ته توجه کول دي، بيا دې له هرې ډلې څخه يو تن خپله ليکلې پاڼه نورو ته ولولي.

| لغتونه | معناوې | لغتونه | معناوې |
|---|---|---|---|
| پيرې | دوره وهل | د سترګو څنبل | د سترګو رپول |
| سفله | پست، ناکس | بوستان | باغ |
| | | ورکړه | سخاوت |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د لاندې بيت مفهوم په خپله ژبه په کتابچو کې وليکي.

**چې دانا نه کړې ګردش د زمانې**     **نور به زده نه کړې دانش د زمانې**

## شلم لوست

# د وطن مینه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د وطن د مینې په مفهوم پوهېدل او د وطن پالنې د روحیې پیاوړتیا.





**پوښتنه**:

ستاسو په فکر د وطن مینه څه ته وایي؟

د وطن مینه «شعر» د ستر شخصیت احمدشاه بابا لیکنه ده. احمدشاه بابا هغه نومیالی پاچا و چې د توري تر څنګ یې قلم هم درلود. هغه د خپل هېواد سره د زړه مینه درلوده. احمد شاه بابا په پښتو ژبه ډېر شعرونه ویلي او یو ښکلی دیوان هم لري. دلته یې «د وطن مینه» شعر د بېلګې په توګه راوړو چې دده له هېواد سره د پاکې مینې احساسات څرګندوي.

**ستا د عشق له وینو ډک شول ځیګرونه ستا په لاره کې بایلي زلمي سـرونـه**

**تاتـه راشمـه زړګـی زما فـارغ شـي بې له تا مې اندېښني د زړه مارونـــه**

**که هر څو مې د دنیا ملکونه ډېر شـي زما به هېر نه شي دا ستا ښکلي باغونه**

**د ډهلي تخت هېرومه چې را یاد کړم زما د ښکلي پښتونخوا د غرو ســرونه**

**د رقیب د ژوند متاع به تار په تار کـړم چـې په تــورو پښتـانه کا ګـــوزارونه**

**د فـریـد او د حمیـد دور به بیا شــي چې زه وکاندم په هر لوري تاختــونه**

**که تمامه دنیـــا یو خواته بل خـــوا یې زما خوښ دي ستا خالي تش ډګـرونه**

**احمدشاه به دغه ستا قدر هېر نه کړي**

**کـــه ونیســـي د تمام جهان ملکـــونه**

(احمدشاه بابا)



## فعالیتونه:

ــ زده کوونکي دې دوه، دوه تنه متن ولولي او د هغه د مطلب په اړه دې خبرې وکړي.
ــ دوه، دوه تنه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي او بیتونه دې یو بل ته د املا په توګه ووایي.
ــ زده کوونکي دې په متن کې هم وزنه کلمې پیدا او د تختې پرمخ دې ولیکي، لکه:
سرونه ــ مارونه... .
ــ زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې د احمد شاه بابا د هېوادنۍ مینې په اړه څو کرښې ولیکي او بیا دې له هرې ډلې څخه یو تن د تختې مخې ته راشي خپل معلومات دې نورو ته وړاندې کړي.

| لغتونه | معناوي |
| --- | --- |
| بایلل | له لاسه ورکول |
| تار په تار | له منځه وړل |
| دور | دوران |
| ډګر | میدان |
| تاختونه | بریدونه |
| رقیب | سیال او رقابت کوونکی |
| متاع | جنس، شی، مال |

## څرګندوني:

له فرید څخه مطلب د سوري په کورنۍ کې شیرشاه سوري دی چې اصلي نوم یې فرید و. او حمید څخه مطلب په لودي کورنۍ کې سلطان حمید لودي دی چې په هند کې یې پاچاهي کړې وه.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په دې اړه چې ولې هر څوک له خپل هېواد سره مینه لري؟ څو کرښې په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکي.

# طبیعي زېرمې

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د طبیعي زېرمو په ارزښت او ګټو پوهېدل او د هغو د ساتنې د روحیې پیاوړتیا.





**پوښتنه**:

تاسو د طبیعي زېرمو په هکله څه اورېدلي او په دې هکله څه ویلای شئ؟

**زموږ ګران افغانستان یو غرنی هېواد دی. زیاتره غرونه یې په مرکزي، شمالي او نورو برخو کې پراته دي چې په آب و هوا یې ډېره ښه اغېزه کړېده.**

**غرونه د واورو او د یخچالونو پراخې سیمې جوړوي چې په بدخشان کې پامیر د یوه طبیعي پارک په توګه یا دولې شو. همدارنګه د هندوکش، سلیمان او د ترکستان د تیربند غرونه د یادولو وړ دي چې لوی کانونه او معدنونه لري.**

**ځنګلونه هم دطبیعي زیرمو غوره برخه ده چې د غرونو په لمنو کې یې د ژوو او ځناورو لپاره د استوګنې سیمې جوړې کړېدي. سربېره پردې چې د هوا په ښه والي او پاکوالي کې ډېره اغېزه لري، د سېلابونو او وچو بادونو مخنیوی هم کوي.**

**ځنګلونه زموږ د هېواد په لویې پکتیا، ننګرهار کونړونو، نورستان، کاپیسا، بادغیس، بدخشان او هرات کې موجود دي.**

**د دغو طبیعي شتمنیو ساتنه او پالنه د هر افغان ایماني او ملي دنده ده که موږ د هغو ساتنې ته سمه پاملرنه و نه کړو، دغه طبیعي شتمني به زموږ نورو نسلونو ته پاتې نشي.**



**فعالیتونه**:

ـ زده کوونکي دې متن ولولي او د طبیعي زیرمو په ارزښت دې له یو بل سره مشوره وکړي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د خپل هېواد د طبیعي شتمنیو په اړه دې خبرې وکړي.

دا لاندې کلمې دې وګوري او هغه دې په جملو کې وکاروي.

غرونه　　افغانستان　　طبیعی　　شتمني

کانونه　　ځنګلونه

ـ هر یو زده کوونکی دې د طبیعي شتمنیو د ساتنې او پالنې په اړه یوه یوه لنډه مقاله ولیکي او ځو تنه دې د ټولګي په مخ کې ولولي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| زېرمې | ذخیرې |
| کانونه | معدنونه |
| اغیزه | تاثیر |
| طبیعي زېرمې | طبیعي شتمنۍ |



**کورنۍ دنده**:

زده کوونکي دې په دې اړه چې موږ د خپل هېواد د شتمنیو په هکله څه مسوولیت لرو، څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# خوشحال خان خټک

**موخه**: د متن لوستل، لیکل او د خوشحال خان خټک د ادبي شخصیت پېژندنه.





**پوښتنه**:

څه فکر کوئ چې آیا خوشحال خان یوازې شاعر و؟

**خوشحال خان د شهباز خان زوی دی. په (۱۰۲۲) هـ.ق کال د خټکو په اکوړه نومي ځای کې زېږېدلی دی. خوشحال خان د خټکو د قبیلې مشر خورا مېړنی، غښتلی، پر هېواد او آزادۍ مین مبارز و. ده ډېر کتابونه لیکلي چې شمېر یې (۲۵۰) ټوکو ته رسېږي. د شعرونو یو دیوان هم لري. د هغه کارنامې، اتلولي او پوهه زموږ د تاریخ یوه وياړلې برخه ده. خوشحال بابا په (۱۱۰۰) هـ.ق کال کې وفات شوی دی.**

**د خوشحال خټک د شعر بېلګه:**

| | |
|---|---|
| خپـــل استاد و ماته ووې څـــو پنـــدونه | هر یو پند یې مرغلرې دي لالـــونه |
| وې یې هـــره بدي کړه هغه بد مه کـــړه | چې له لاسه دې آزار شي د چا زړونه |
| که دې زړه وي چې بد نه مومې له چا نه | اول ته پرېږده د بـــدو خصلتـــونه |
| د هـــر چا ســـره د ښو سلـــوک بایده دی | په بدۍ کې څه فایده ده کوم ســودونه |

د دنیا په مال د نېکو نوم حاصل کړه | تل جهان و چاته نه پرېږدي مالونه
هغه کار چې په نرمۍ ترسره کېږي | څه حاجت چې رساوه شي تر جنګونه
که په خپله د خپل ځان په بدۍ نه یې | د ماړونو په غار مه منډه لاسونه
په خپلوانو باندې هومره خشم مه کړه | چې پردي در ځینې تښتي په ملکونه
په ځوانۍ کې چې دې کار له لاسه ووځي | په پیرۍ به دې ور نه رسي لاسونه
په رښتیا که په درواغ وي سوګند مه خوره | منافق دي چې ډېر ډېر خوري سوګندونه



**فعالیتونه**:

- زده‌کوونکي د ې شعر ولولي او د معنا په اړه دې خبرې وکړي .
- زده‌کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او د متن لغتونه دې په جملو کې وکاروي.
- زده‌کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د خوشحال خان د مېړانې او اتلولۍ په برخه کې دې خبرې وکړي.
- زده‌کوونکي دې په دې اړه چې: موږ څنګه کولای شو له دغو پندونو څخه د ژوند په چارو کې پیروي وکړو، دوه دوه جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| پندونه | نصیحتونه |
| خشم | قهر او غوصه |
| سوګند | قسم |
| منافق | دوه مخی |



**کورنۍ دنده**:

زده کوونکي دې د خوشحال خان د دې بیت په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

**هغه کار چې په نرمۍ ترسره کېږي** | **څه حاجت چې رساوه شي تر جنګونه**

# صفت

**موخه**: د متن سم لوستل، سم لیکل، د صفت د کلمې پېژندنه او سمه کارونه.






**پوښتنه**:

آیا تاسو د صفت له کلمې سره آشنا یاست او هغه پېژنئ؟

**صفت هغه کلمه ده چې د نوم حالت او څرنګوالی وښیي. صفتونه تل له خپل موصوف سره یو ځای راځي. لکه : توري ځپلۍ، شین آسمان، پوه هلک او نور.**

**دصفت مهم ډولونه:**

**۱ـ اصلي صفتونه**: **هغه دي چې د نوم ذاتي ښه والی او بدوالی وښیي لکه: توره تخته، ښه سړی، هوښیاره نجلۍ، جګه ونه، ناپوه سړی، سپین کاغذ.**

**۲ـ نسبتي صفتونه**: **هغه کلمې چې نسبت یې بل نوم، شي یا حالت ته وشي لکه: کابلی، میوندوال، سلیمان خېل، قیمتي، طلایي او نور.**

**۳ـ اشاري صفتونه**: **هغه صفتونه چې د هغو په واسطه موصوف ته اشاره وشي لکه: دغه نجلۍ درس وایي. هغه ونه یخ سیوری لري. دا د ابن سینا ښوونځی دی. هغه ښځه ډوډی پخوي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې دوه دوه تنه په خپلو منځو کې متن له یو بل سره په مشورې ولولي.
ـ د خپل ټولګي او چاپېريال د ځینو شیانو نومونه دې د صفت او موصوف په توګه راوړي او بیا دې په کتابچو کې ولیکي، لکه: سپین دیوال، لوی صنف، ښکلي ګلان.
ـ په دې لاندې متلونو کې دې صفت او موصوف په نښه او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

تر نادان دوست څخه هوښیار دښمن ښه دی.

کوړ بار تر منزله نه رسېږي.

له تندو اوبو مه وېرېږه، له مړو اوبو ووېرېږه!

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| صفت | ستاینه |
| موصوف | ستایل شوی، ستایلی |

یادونه: موصوف هغې کلمې ته وایي چې صفت د هغه لپاره راغلی وي، لکه: توري څپلۍ چې تور یې صفت او څپلۍ یې موصوف دی.

په اشاري صفت کې دغه نژدې، هغه لرې او هوغه ډېره لرې اشاره ده.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپله خوښه (صفت او موصوف) څو نوي مثالونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# خلور ويشتم لوست

## قيمتي ډبرې

**موخه**: د متن لوستل، ليکل او د قيمتي ډبرو په ارزښت پوهېدل او د هغو د ساتنې د روحيې پياوړتيا.





**پوښتنه**:

تاسو داسې رنګه ډبرې ليدلي چې له عادي ډبرو څخه توپير ولري؟

**زموږ چاپېريال له طبيعي موادو څخه ډک دی. ځينې ډبرې يې له هغو موادو څخه دي چې په غرونو او درو کې په بېلا بېلو ډولونو پيداکېږي. د دغو ډبرو طبيعي رنګونه ډېر ښکلي او په زړه پورې دي. ځينې ځلا لرونکې، ځينې يې نيمه ځلا لرونکې اوځينې نورې يې بې ځلا دي.**

**ځلا لرونکې ډبرې په طبيعي توګه ښکلې، ارزښتمنې او په زړه پورې رنګونه او شکلونه لري چې له دغو ډبرو څخه د غميو په توګه په ګاڼو (زېوراتو) کې کار اخيستل کيږي، لکه: ياقوت، زمرد، لاجورد، عقيق، الماس او نور.**

**ياقوت ځلا لرونکې ډبره ده چې ډېر صفا سور رنګ لري. زمرد په ښکلي شنه رنګ پيدا کيږي.**

**عقيق هم تور، سپين، ژېړ او نور رنګونه لري. الماس تر ټولو ډبرو د لوړې**

**بيې لرونکی دی چې ځلا لرونکی سپین روښانه رنګ لري  او ډېر لږ پيدا کیږي.**

**په دې ترتيب تر ۳۵ ډوله زياتې مختلفې قيمتي ډبرې زمونږ د ګران هېواد په طبيعت کې موجودې دي چې د بدخشان، پروان، کندهار، نورستان، کابل، ميدان، او د نورو مرکزي سيمو له غرونو څخه لاس ته راځي.**



**فعاليتونه:**

_زده کوونکي دې په وار سره متن ولولي او په مطلب دې خبرې وکړي.

- زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي او لاندې لغتونه دې په جملو کې وکاروي.

کاڼي، ډبره،  غمي، الماس، زمرد

- زده کوونکي دې په وار سره ټولګيوالو ته ووايي چې له ځلا لرونکو ډبرو څخه په کومو برخو کې کار اخيستل کېږي؟

- زده کوونکي دې په وار سره  د تختې مخې ته راشي او د صفت کلمې دې په متن کې پيدا بيا دې پرتختې وليکي.

| **لغتونه** | **معناوې** |
|---|---|
| ډبره | تيږه |
| ګاڼې | زيورات |



**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې په دې هکله چې: موږ د هېواد د قيمتي ډبرو او نورو شتمنيو د ساتنې په برخه کې څه مسووليت لرو؟ څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکي.

# پنځه ويشتم لوست

# کمپيوټر

**موخه**: د متن لوستل، ليکل او د کمپيوټر د مهارتونو د زده کړې د روحيې پياوړتيا.





**پوښتنه**:

تاسو د کمپيوټر نوم اورېدلی او د هغه په هکله څه ويلای شئ؟

**کمپيوټر هغه ماشين دی چې د انسانانو بې شمېره ستونزې يې حل کړې دي.**

**د لومړي ځل لپاره په ۱۹۴۲ م کال د امـريـکايي (الا تا سوټ برى) په وسيله اختراع شو او له هغه وخت څخه يې را وروسته ډېره پراختيا موندلې ده.**

**کمپيوټر له څلورو اساسي برخو څخه جوړ شوی دی.**

**لومړۍ برخه يې سکرين يا مانيتور نومېږي چې په دې صفحې کې د کمپيوټر پروګرامونه ليدل کېږي.**

**دويمه برخه (پي، سي، يو) ده چې د کمپيوټر اساسي برخه ګڼل کېږي او د کمپيوټر حافظه ده.**

**دريمه برخه يې د کيبورډ برخه ده چې د کماندونو توري او نورې بټنې په دې برخې پورې اړه لري.**

**څلورمه برخه يې د موس (Mouse) په نامه يادېږي چې کمانډونه د هغه په وسيله کارول کيږي.**

**کمپيوټر ټول معلومات په خپله حافظه کې ساتي که څوک هر وخت وغواړي له هغه څخه کار اخيستلای شي او هم کولای شي چې معلوماتو ته بدلون ورکړي.**



**فعاليتونه:**

ـ زده کوونکي دې په وار سره متن ولولي او په هغه دې خبرې وکړي.

ـ زده کوونکي دې وهڅول شي چې په سيالی سره د کمپيوټر هره برخه له يو بل څخه وپوښتي:

ـ دوه دوه زده کوونکي دې په خپلو منځو کې متن يو بل ته املا ووايي او بيا دې اصلاح کړي.

- زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او د کمپيوټر د مهارتونو په هکله چې څومره پوهېږي خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| ستونزې | کړاوونه او مشکلات |
| بدلون | تغيير |



**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې په اوسني عصر کې د کمپيوټر د ارزښت او اړتيا په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکي.

# ضمیرونه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د ضمیرونو پېژندل او د هغو سمه کارونه.






**پوښتنه**:

تاسو کله د ضمیر کلمه اورېدلې او د هغه په هکله څه ویلای شئ؟

**ضمیرونه هغه خپلواکې کلمې دي چې د نوم پرځای راځي، لکه: زه، مونږ، ته، تاسې، دی، دا، دوی، هغه ، دغه، هغوی.**

**د ضمیرونو مهم ډولونه په لاندې ډول دي:**

**شخصي ضمیرونه:**

**هغه ضمیرونه دي چې د یوه شخص یا وګړي لپاره راشي، لکه:**

| | | | |
|---|---|---|---|
| **د متکلم لپاره:** | **زه** | **ما** | **مونږ** |
| **د مخاطب لپاره:** | **ته** | **تا** | **تاسې** |
| **دغائب لپاره:** | **دی** | **دا** | **دوی** |

**مثالونه: زه راغلم. دوی راغلل. ما کتاب واخیست.**

**اشاري ضمیرونه:**

**هغه ضمیرونه دي چې شخص یا شي ته د اشارې لپاره راشي، لکه: دغه وایي. هغه راغی. دا زما ملګری دی.**

**اشاري ضميرونه عموماً د نژدې لپاره (دغه)، د لېرې لپاره (هغه) او ډېر لېرې لپاره (هوغه) راځي.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې د ضمیرونو په هکله له یو بل سره خبرې وکړي.

زده کوونکي دې په دې لاندې جملو کې د ضمیر ډولونه وښيي او هغه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

- دا زما استاد دی.
- دوی ټول ټولګي ته را غلل.
- ورور مې له بهر څخه را ورسېد.

- دوه دوه تنه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو تن دې د شخصي ضمیرونو مثالونه پر تختې ولیکي او بل دې د هغو په توپیر خبرې وکړي.

- زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي، څو جملې دې په خپله خوښه ووايي او په هغو کې دې ضمیرونه وښيي.

| **لغتونه** | **معناوې** |
| --- | --- |
| وګړي | خلک |
| مخاطب | اورېدونکی |
| متکلم | ویونکی |
| غائب | چې حاضر نه وي (درېيم سړی) |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په نوو مثالونو کې ضمیرونه وښيي او په کتابچو کې دې ولیکي.

# لنډۍ

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د لنډیو پېژندل او د هغو په مفهوم او ارزښت پوهېدل.






**پوښتنه**:

تاسو ویلای شئ چې لنډۍ به څه ډول اشعار وي؟

**لنډۍ هغـه ولسي او ملي شعرونه دي چې شاعـران يې معلوم نه دي. د هر حساس پښتانه او پښتنې د زړه غږ او د احساساتو هنداره بلل کېږي. دا ملي اشعار یوازې د پښتو ژبې د ادبي میراثستره پانګه ده چې په نورو ژبو کې يې ساری نه لیدل کېږي. لنډۍ ډېر ډولونه لري، لکه: د هېواد پالنې، ټولنيزې، اخلاقي، عشقي او نورې.**

**له نورو اشعارو څخه د لنډيو توپير دا دی چې ويونکي يې معلوم نه دي. تر ویلو وروسته د خلکو مال ګرځي او ولسونه يې نسل په نسل یو بل ته ليږدوي.**

**دا شعرونه څومره چې ساده او سوچه دي، هغومره د نورو ژبو له اغېزو څخه هم پاک ساتل شوي. لنډۍ ځانته سېلابي سیستم لري چې لومړی برخه يې لنډه (۹) څپې او دويمه برخه يې اوږده (۱۳) څپې (سېلابه) ده.**

**د دغو اشعارو بله ځانګړتیا دا ده چې زیاتره د ښځو له خوا نرېنه وو ته ويل شوي، نو ځکه اغېزمن او د نازکو احساساتو لرونکي دي.**

لکه لاندې لنډۍ:

پــه وطــن نـیمــــه ډوډۍ ښـــــه ده
نه پـه پردي وطن کـې غوښې پلـوونـــه
ځــــوانانـــو خپـــل وطـــن تـــه راشــــئ
که خلک ډېر دي پرې ودان دي خپل کورونه



**فعالیتونه:**

- زده کوونکي دې په وار سره متن ولولي او د هغه په مطلب دې خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د لنډیو د مهمو ځانګړتیاوو په هکله دې خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې لاندې لغتونه په جملو کې وکاروي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. هنداره، لنډۍ، ځپه، ځانګړتیا
- زده کوونکي دې د ټولګي په مخکې ځینې لنډۍ چې د دوی زده وي ووایي او په مطلب دې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| هنداره | آیینه |
| ځپې | سېلاب، هیجا |
| ځانګړتیا | خصوصیت |
| ساری | مثل |
| لېږد | کوچ، انتقال |
| اغېز | تاثیر |
| پانګه | ذخیره، شتمني |



**کورنۍ دنده:**

زده کــوونــکـي دې د کورنۍ په مرسته څو لنډۍ چې په مفهوم یې وپوهېږي په خپلو کتابچو کې ولیکــي.

# ایوډین

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د ایوډین په روغتیایي ارزښت پوهېدل.





**پوښتنه**:

ستاسو په فکر زموږ په سلامتی کې آیوډین څه ارزښت لري؟

منرالونه د انسان د بدن لپاره ډېر ګټور او اړین دي چې آیوډین هم یو له دغو منرالونه څخه دی. ډېر خلک یې د غذایي موادو او اوبو له لارې تر لاسه کوي. په هغو سیمو کې چې له سمندر څخه لرې وي او د ماهي غوښه په آسانۍ سره نه پیدا کېږي، خلک یې د آیوډین په کمښت اخته وي.

څرنګه چې آیوډین د انسان په بدني ودې او د دماغ د حجرو په جوړولو کې ډېره اغېزه لري، نو که د ماشوم په بدن کې آیوډین لږ وي، ماشوم له دماغي کمزورتیا سره مخ کېږي. او د بدن ټول غړي یې په سم ډول وده نشي کولای. په لویانو کې د آیوډین د لږوالي له کبله د غاړې مخکنۍ برخه (غُده) چې تایراید نومېږي لویېږي او په جاغور بدلېږي.

د هغو خلکو په بدن کې چې آیوډین کم وي باید په خوړو کې آیوډین لرونکي مالګه وکاروي.

د کبانو غوښې او نور هغه خواړه دي وخوري چې آیوډین ولري. همدا راز د آیوډین لرونکو درملو خوړل هم په بدن کې د آیوډین کمښت له منځه وړي.



## فعالیتونه:

- یو یو زده کوونکي دې متن ولولي او په هغه دې خبرې وکړي.

- زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او په بدن کې د آیوډین د کمښت په هکله دې خبرې وکړي.

- زده کوونکي دې دوه دوه تنه د متن جملې یو بل ته املا ووايي او بیا دې اصلاح کړي.

- زده کوونکي دې د متن لغتونه له یو بل څخه وپوښتي او جملې دې ورته جوړې کړي.

- زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې د آیوډین د روغتیایي ارزښت په هکله څو کرښې ولیکي او بیا دې له هرې ډلې څخه یو تن هغه نورو ته ولولي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| کمښت | کموالی |
| وده | لوېدل، نمو |
| غړي | عضلې |
| درمل | دوا، دارو |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په دې هکله چې د آیوډین کمښت په لویانو او ماشومانو کې کومه ستونزه رامنځ ته کوي لنډ معلومات په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# نهه ویشتم لوست

## عدد

**موخه**: د متن لوستل، لیکل، د عدد پېژندل او د هغه سمه کارونه.







**پوښتنه**:

تاسو کله د عدد کلمه اورېدلې ده، عدد څه ته وايي؟

**عــــدد**: هغه خپلواکه کلمه ده چې د (نومونو) شیانو او اشخاصو شمېر راښيي.

همدارنګه د شیانو او اشخاصو درجه او مرتبه یا مقام هم څرګندولای شي. کوم شی چې د عدد په وسیله شمېرل کېږي معدود بلل کېږي.

**د مثال په ډول**: دوه سترګې، درې کتابونه، شل زده کوونکي، څلور هېوادونه.

په دغو مثالونو کې (دوه، درې، شل، څلور) عددونه او (سترګې، کتابونه، زده کوونکي او هېوادونه) معدود بلل کېږي.

**د عـدد ډولـــونه**:

**اصلي عددونه**: چې یوازې شمېر او کمیت وښيي، لـکـه: دوه، درې، شل اونور.

**رتبي عـــددونه**: چې د معدود درجــه او مرتــبــه څرګنده کړي. لکه: درېم سړی، شلم پوړ، درېمه درجه اونور.....



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې متن ولولي، د عدد او معدود لپاره دې ډول ډول مثالونه وښيي.
- زده کوونکې دې لاندې جملې ولولي او په هغو کې دې عدد او معدود وښيي.
  - خوشحال خان یو نامتو شاعر دی چې ۲۵۰ ټوکه کتابونه یې لیکلي دي.
  - د څمکې درې برخې اوبه او یوه برخه یې وچه ده.
  - هوښیاره مرغۍ په دوو لومو کې نښلي.
  - د شپږم ټولګي درسونه په زړه پورې دي.
- زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي او لاندې لغتونه دې په جملو کې وکاروي.

شمېر - معدود - کمیت - وصفي

- څو تنه زده کوونکي دې د اصلي او رتبي عددونو مثالونه ووايي او په توپیر دې خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، د ټولګي شیان دې د عدد او معدود په شکل ووايي، لکه: یوه تخته، درې کړکۍ ...

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| شمېر | حساب، اندازه |
| کمیت | اندازه |
| معدود | شمېر ل شوی شی |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې عدد او معدود تعریف او په نوو مثالونو کې دې وښيي، بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# مېرمن زينبه

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل او د مشهورې شاعرې مېرمن زينبې پېژند ګلوي.



**پوښتنه**:

تاسو له پښتنو مېرمنو څخه کومه يوه پېژنئ؟

**زموږ هېواد افغانستان ډېرې نومیالۍ مېرمنې لري چې په پوهې، مېړانې او کارنامو يې تل وياړو. له دغو نامتو مېرمنو څخه يوه هم د ستر ملي مشر ميرويس نيکه لور مېرمن زينبه ده. مېرمن زينبې د ۱۱۴۲ هـ. ق کلونو په شاوخوا کې ژوند کاوه.**

**مېرمن زينبې د خپل وخت ديني، ادبي کتابونه او د شاعرانو ديوانونه لوستلي و. مېرمن زينبه يوه فاضله مېرمن او له پياوړو ښځينه شاعرانو څخه شمېرل کېږي، دې مېرمنې ډېرو نجونو او ښځو ته ديني زده کړې ورکړې او ليک لوست يې ور زده کړی و.**

**دا هوښياره مېرمن د ژوند په لارو چارو ډېره ښه پوهېده، تر دې چې ورور يې شاه حسين هوتک د سلطنت په چارو کې له دې څخه مشورې اخيستلې.**

**د مېرمن زينبې د شعر يوه نمونه چې دخپل ورور شاه محمود هوتکي په**

ویر کې یې ویلې او په پټه خزانه کې ذکر شوې دا ده:

ږغ شـــو چې ورور تــېر له دنــيا ســـــونا
کــنــدهـــار واړه پـــه ژړا ســـونـــا
زړه مې پـــه ویـــر کـــې مـبـتـلا سـونـا
چې شـاه محمود له ما جدا ســونا
هـوتـک غـمـجن پـه دې مـاتـم دی نا
د پـاچا هـی تـاج مـو بـرهـم دی نـا



**فعالیتونه:**

- دوه دوه تنه زده کوونکي دې متن په خپلو منځو کې ولولي او د هغه په مطلب دې مشوره وکړي.
- زده کوونکي دې دوه دوه تنه په خپلو منځو کې متن یو بل ته املا ووایي.
- زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي، د مېرمن زینبې د شخصیت په اړه دې یوه یوه جمله جوړه او پر تختې دې ولیکي.
- زده کوونکي دې په خپله خوښه د تختې مخې ته راشي او د کومې بلې نومیالۍ مېرمنې په اړه دې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| پیاوړی | غښتلی |
| کارنامې | ډېر عالي کارونه |
| ویر | غم، ماتم |
| دیوانونه | د دیوان جمع دی، د یو شاعر د اشعارو مجموعه |



**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د مېرمن زینبې د پوهې او شخصیت په هکله لنډه مقاله په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د پنسل اختراع

**موخه**: د متن لوستل، لیکل او د لومړي ځل لپاره د پنسل د جوړېدو په هکله پوهېدل.







**پوښتنې**:

آیا تاسو پوهېږئ چې پنسل به څه ډول جوړ شوی وي؟

تاسو فکر کولای شئ چې پنسل به لومړی څه ډول و؟

**په ډېرو پخوا زمانو په انګلستان کې د سکرو په شان یو شی کشف شو چې ګرافیت نومېده. خلکو د رسم په کښلو کې ترې کار اخیسته، خو ستونزه دا وه چې دې ګرافیت یا سکرو به لاسونه تورول، نو وپتیل شوه چې دا ستونزه هواره او کار آسان کړي. همدا و چې ګرافیت یې د دوو لرګیو په منځ کې د تار په واسطه وتاړه. دا کار هم ستونزمن و، ځکه چې دا لرګي باید څو ځلې خلاص او تړل شوي وای.**

**د کلونو په تېرېدو سره خلکو ته نوي، نوي فکرونه پیدا شول. په پایله کې دې مفکورې ته ورسېدل:**

**لرګي په طبیعت کې ډېر او ارزانه پیدا کېږي. ګرافیت دې د لرګیو په منځ کې کېښودل شي چې د پنسل سر په آسانۍ سره تېره او د لیکلو کار ترې واخیستل شي.**

**په دې ډول د پنسل قلم چې تاسې کار ترې اخلئ، ورو، ورو په اوسنۍ بڼه منځ ته راغی.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې متن ولولي او په مطلب دې له یو بل سره مشوره وکړي.
- زده کوونکي دې په چوکاټ کې اړوندې کلمې په نښه او په خپلو کتابچو کې دې د یوې کرښې په مرسته وښيي.

| نومونه | تېره، ستونزمن |
|---|---|
| صفتونه | تاسې، دغه |
| عدد او معدود | ګرافیت، انګلستان |
| ضمیرونه | لومړی ، دوه لرګي |

- زده کوونکي دې په وار سره د لوست لغتونه د تختې پر مخ په جملو کې وکاروي.
- زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، د پنسل د منځ ته راتلو بهیر دې په خپله ژبه ووایي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| ګرافیت | د سکرو په شان مواد |
| خو ځلې | څو واره |
| بڼه | شکل |
| پتیل | تصمیم نیول |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د پنسل د منځ ته راتلو مطلب په لنډه توګه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# عبدالرووف بینوا

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د عبدالرووف بینوا د ادبي شخصیت پېژندل.





**پوښتنه**:

آیا تاسې د عبدالرووف بېنوا په هکله څه ویلای شئ؟

**عبدالرووف بېنوا د عبدالله زوی په ۱۲۹۲ هـ کال، په کندهار کې زېږېدلی، د خپل وخت مروجه علوم یې پای ته رسولي و. د پښتو ژبې پېژندل شوی څېړونکی، نامتو لیکوال او پوخ شاعر و. بېنوا سربېره له پښتو په دري، عربي، اردو، انګریزي او روسي ژبو هم ښه پوهېده.**

**بینوا د خپل ژوند په اوږدو کې ډېرې سترې دندې په بریالیتوب سره سرته رسولي دي. پر نورو دندو سربېره د اطلاعاتو د وزیر په توګه یې هم دنده ترسره کړې ده.**

**بینوا د پښتو ژبې او ادب د ودې او پراختیا په ډګر کې ستر ګامونه اخیستي دي، نوموړي له علمي او ادبي خدمتونو څخه وروسته په ۱۳۲۳ هـ کال له نړۍ څخه سترګې پټې کړې دي.**

**بېنوا د پښتو ژبې او ادبیاتو ډېر کتابونه لیکلي چې ځینې یې دا دي: میرویس نیکه، پښتنې مېرمنې، ادبي فنون، خوشحال خان خټک څه**

**وايي؟، اوسني ليکوال په دري جلدو کې، وېښ زلميان، د افغانستان نوميالي او نور .**

| | |
|---|---|
| **زه عاجز به نفس هوا کوم ترکومه** | **خورم سوړسک خيال د حلوا کوم ترکومه** |
| **له خوارۍ او غريبۍ نه مې عار نشته** | **زه احتياج به د بل چا کوم ترکومه** |
| **چې په خپله مېره نه يم په دنيا کې** | **نو به فخر په بابا کوم ترکومه** |
| **چې د نن کار و سباو ته معطل کړم** | **اعتبار به په سبا کوم ترکومه** |
| **بې زحمته راحت کله «بېنوا» شته** | **نو خلاف له دې وينا کوم ترکومه** |


**فعاليتونه:**

- زده کوونکي دې متن ولولي او د هغه په مطلب دې خبرې وکړي.
- هر يو زده کوونکی دې لاندې لغتونه په جملو کې وکاروي او په کتابچو کې دې وليکي.
(نامتو، څېړونکی، برياليتوب،وېښ، نوميالي)
- زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او متن دې يو بل ته املا ووايي.
- زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او د بينوا د ادبي کارنامو او خدمتونو په اړه دې خبرې وکړي.

| **لغت** | **معنا** | **لغت** | **معنا** |
|---|---|---|---|
| څېړونکی | محقق يا تحقيق کوونکی | برياليتوب | کاميابي |
| نامتو | مشهور | عار | ننګ او عيب |


**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د عبدالرووف بېنوا په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکي.

# زلزله څنګه منځ ته راځي؟

**موخه**: د متن لوستل، ليکل، د زلزلې په هکله پوهېدل او د زلزلې په وخت کې د خپل ځان د ژغورنې په لارو چارو پوهېدل.





**پوښتنه**:

تاسو کوم وخت  د زلزلې په ټکانونو پوهېدلي ياست او دزلزلې له کلمې سره آشنا ياستئ؟

**کله به تاسې هم د ځمکې په ښورېدو پوه شوی ياست يا به مو د ځمکې د ټکانونو په نتيجه کې ډېرې خرابۍ ليدلې وي. د ځمکې دغو ښورېدو او ټکانونو ته زلزله وايي.**
**زلزله لوی آفت دی چې د زرګونو انسانانو او نورو موجوداتو د مرګ سبب ګرځي. ښارونه، کلي، باغونه او هر څه وېجاړوي.**
**ځمکه پېژندونکي پوهان تر علمي څېړنو وروسته دې نتيجې ته رسېدلي چې: د الله جل جلاله په امر زلزله د ځمکې د لاندينۍ برخې د ډبرو له حرکت او ښوييدو څخه منځ ته راځي. هغه ځای چې دا پېښې په کې منځ ته راځي د زلزلې مرکز بلل کېږي. د زلزلې د ټکانونو زور او شدت په مرکز کې تر نورو ټولو ځايونو زيات وي.**
**ځمکه پېژندونکي او د جغرافيې پوهان د زلزلې زور او سختوالی د زلزله سنج په واسطه  چې (ريکتر) نومېږي، اندازه کوي.**



## فعالیتونه:

- یو یو تن زده کوونکي دې متن ولولي او په مطلب دې خبرې وکړي.

- هر یو زده کوونکی دې لاندې لغتونه معنا بیا دې په جملو کې وکاروي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.

پېښه، پوهان، ریکټر، وېجاړ

- دوه دوه تنه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي او د متن جملې دې یو بل ته املا ووایي.

- زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي او په دې اړه دې خبرې وکړي چې:

• د زلزلې د پېښېدو په وخت کې د ځان او مال د ژغورنې لپاره باید څه وکړو؟

| لغت | معنا |
|---|---|
| آفت | مصیبت |
| وېجاړ | وران |
| پېښه | واقعه |
| ریکټر | هغه آله چې د زلزلې د زور او شدت اندازه پرې معلومېږي. |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په دې هکله چې د زلزلې په وخت کې څنګه خپل ځان له خطر څخه وساتي یو لنډ مطلب په خپلو کتابچو کې ولیکي.

## څلور دېرشم لوست

# عبدالرحمن بابا

**موخه**: د متن لوستل، ليکل او د رحمان بابا د ادبي شخصيت پېژندنه.





**پوښتنه**:

آيا تاسو د رحمان بابا نوم اورېدلی او هغه پېژنئ؟

**عبدالرحمان بابا د پښتو ژبې نوميالی اديب او صوفي شاعر و. د پلار نوم يې عبدالستار او په ۱۰۴۲ هـ. ق کال د پېښور په بهادر کلي کې زېږېدلی دی.**

**د رحمان بابا د شخصيت د پېژندنې لپاره دومره بس دی چې ټول خلک ورته بابا وايي. نوموړی يو خوږ ديوان لري چې ارزښتمن مضامين يې په داسې ساده او ښکلو الفاظو کې بيان کړي دي چې د نورو شاعرانو په اشعارو کې ډېر لږ ليدل کيږي.**

**دا نامتو شاعر په ۱۱۲۸ هـ ق کال وفات شوی او د پېښور د هزار خانې په هديرې کې ښخ دی. د ده له کلام څخه څو بيتونه:**

**کر د ګلو کړه چې سيمه دې ګلزار شي**
**اغزي مه کره چې پښو کې به دې خار شي**

**ته چې بل په غشو ولې هسې پوه شه**
**چې همدا غشی به ستا په لور ګوزار شي**

**کوهی مه کينه د بل سړي په لار کې**
**چېرې ستا به د کوهي په غاړه لار شي**

**(( رحمان بابا ))**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې متن ولولي او د شعر هر بیت دې په نثر واړوي.
- زده کوونکي دې د رحمان بابا له اشعارو څخه کوم بیت یا بیتونه زده وي پر تختې ولیکي او د هغه په هکله دې خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې یو بل ته د متن املا ووایي او بیا دې ورته اصلاح کړي.
- زده کوونکي دې ښه فکر وکړي بیا دې ووایي چې د رحمان بابا له دې بیتونو څخه پیروي کول څه ګټه لري؟

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| نومیالی | مشهور او د نوم خاوند |
| ښخ | خاوروته سپارل شوی |
| ادیب | ادب پوه |
| مه کینه | کینډل مه کوه |
| کوهی | څاه |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې دا مطلب په لنډه توګه په خپلو کتابچو کې ولیکي چې:
موږ په خپل ژوند کې د رحمان بابا له اشعارو څخه څنګه پیروي کولای شو؟

## پنځه دېرشم لوست

# فعل

**موخه**: د متن لوستل، لیکل او د فعل په معنا، مفهوم پوهېدل او د هغه سمه کارونه.



**پوښتنه**:

آیا تاسو ویلای شئ چې د فعل کلمه څه ډول کلمه ده؟

**فعل**: هغه خپلواکه کلمه ده چې له درې ګونو زمانو څخه په یوه زمانه کې د یوه کار کول او پېښېدل را ونښيي.

فعل د وینا ډېره ارزښتمنه برخه ده، بې له هغه څخه د جملې معنا نه بشپړېږي.

لکه: مینه درس وایي.

احمد راغلی و.

فعلونه د زمانې له مخې دا درې ډولونه لري:

**د حال زمانې فعل**:

هغه کلمه ده چې د یوه کار کول په حال یا جاري زمانه کې څرګند کړي.

لکه: زه کتاب لولم. دی ډوډۍ خوري. احمد درس وایي.

**د تېرې زمانې یا (ماضي فعلونه)**:

هغه فعلونه دي چې د یوه کار، کول په تېره زمانه کې ونښيي.

لکه: ما ډوډۍ خوړلې ده. هغه درس لوستلی و. احمد پرون تللی و.

## د راتلونکې زمانې يا مستقبل فعلونه :

**هغه فعلونه دي چې د يو کارکول په راتلونکې زمانې کې راوښيي.**

**لکه: زه به کامیابه شم. ته به کورته لاړ شې. نوریه به خط ولیکي.**



### فعالیتونه:

- زده کوونکي دې متن ولولي او د درس په مطلب دې خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې په لاندې جملو کې فعلونه او د هغو ډولونه وښيي.
  - افغانستان پخوا د آریانا په نامه یاد شوی دی.
  - زه هوډ لرم چې خپل کار په خپل وخت کې ترسره کړم.
  - موږ به په زیار او کوښښ خپله خاوره ودانه کړو.
  - بله میاشت به زموږ آزموینه پیل شي.
- دوه دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د متن یوه برخه دې یو بل ته املا ووایي او پاتې کسان دې د هغه په معنا او مفهوم خبرې وکړي.
- څو زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او کومې خبرې چې په ټولګي کې له یو بل سره کوي، په هغو کې دې فعلونه راوښيي.

لکه: ښوونکي درس راکړ، زده کوونکو کورنۍ دنده راوړې وه.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| ماضي | تېرمهال، تېره زمانه |
| مستقبل | راتلونکې، آینده |



### کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په درې ګونو زمانو کې د فعلونو څو څو نوي مثالونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.



# لوی مخترع
## (اډيسن)

**موخه**: د متن سم لوستل،ليکل او د اډيسن پېژندنه.






**پوښتنې**:

آيا تاسو د اډيسن نوم اوريدلی او هغه پيژنئ؟

آيا تاسو د برېښنا منځ ته راوړل د بشريت لپاره لوی خدمت بولئ؟

**توماس اډيسن په (۱۸۴۷) ميلادي کال په امريکا کې زېږيدلی، دی لا اووه کلن نه و چې په ښوونځي کې شامل شو. ده پر ښوونځي سربېره په خپلو ځمکو کې هم کار کاوه.**

**په پنځلس کلنۍ کې يې د چاپ ماشين واخيست. خپله ورځپاڼه يې پرې چاپوله. په شپاړس کلنۍ کې نيويارک ته لاړ. په پنځو کلونو کې يې يو سلو دوه ويشت اختراعگانې وکړې. گرامافون يې جوړ کړ، څه موده وروسته د روښنايي په فکر کې شو، خپل کارته يې په کلک عزم ملا وتړله، ترڅو چې په (۱۸۷۹) ميلادي کال کې په دې بريالی شو چې د برېښنا څراغ منځ ته راوړي.**

**دغه ستر خدمت کوونکي په (۱۹۳۱) ميلادي کال کې له دې نړۍ څخه سترگې پټې کړې دي.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې متن ولولي او د اډیسن په هکله دې خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې دوه دوه تنه یو بل ته د متن املا ووایي او په خپلو منځو کې دې اصلاح کړي.
- زده کوونکي دې د متن لغتونه له یو بل څخه وپوښتي او بیا دې په جملو کې وکاروي.
- څو تنه زده کوونکي دې په خپله خوښه د تختې مخې ته راشي او په دې اړه دې خبرې وکړي چې: د اډیسن له ستر خدمت او کارونو څخه یې څه درس اخیستی دی؟

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| نړۍ | جهان |
| ستر | لوی |
| روښنايي | رڼایي |
| برېښنا | برق |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په دې اړه یو لنډ مطلب په خپلو کتابچو کې ولیکي:

**موږ څنګه کولای شو چې خپلو خلکو ته د خدمت وړ وګرځو.**

# رابعه بلخي

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د یوې مشهورې شاعرې په توګه د رابعه بلخي پېژندنه.






**پوښتنه**:

آیا تاسو د دري ژبې له پخوانیو شاعرانو څخه د چا نوم اوریدلی دی؟

**مېرمن رابعه لومړنۍ ښځه ده چې په څلورمه پېړۍ کې یې په شعر ویلو پیل کړی دی. دا مېرمن د ساماني دورې د امیرانو له کورنۍ څخه وه. پلار یې کعب نومېده چې د بلخ او نورو شاوخوا سیمو حکمران و. مېرمن رابعه سربېره له حسُن او ښکلا څخه په علم و معرفت کې هم ډېره مشهوره وه.**

**مولانا نورالدین عبدالرحمن جامي په خپل کتاب (نفحات الانس) کې دا یوه عالمه او عارفه ښځه بللې ده.**

**مېرمن رابعې د خپل وخت مروجه علوم لوستلي او فنون یې زده کړي وو.**

**په شعر ویلو کې یې ډېر لوړ استعداد درلوده چې نوموړې ته د هغه وخت لوړو شاعرانو او د ادب مینه والو د زین العرب لقب ورکړی و.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې یو یو تن د تختې مخې ته راشي، متن دې ولولي، په مفهوم او مطلب دې خبرې وکړي.

-دوه دوه تنه زده کوونکي دې د متن جملې یو بل ته املا ووايي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.

- زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او کوم پیغام یې چې له دې متن څخه اخیستی نورو ته بیان کړي.

- څو تنه زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي که د دري یا پښتو ژبې د نورو شاعرانو نومونه یې په یاد وي د تختې پر مخ دې ولیکي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| پیړۍ | قرن |
| معرفت | پیژندنه |
| حکمران | حکم کوونکی، لوی ولسوال |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د لوست مفهوم په لنډه توګه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

## اته دېرشم لوست

# د فعل رېښه

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل، د فعلونو د رېښو پېژندل او د هغو سمه کارونه.



**پوښتنه**:

تاسو څه فکر کوئ، فعلونه هم رېښې لري؟

### د فعلونو رېښې:

**رېښه د فعل اصل او بنسټ دی، د فعل رېښه د فعل هغې برخې ته ويل کېږي چې تاړي يا وندونه ور پورې ونښلي او نورې کلمې ترې جوړې کړي.**

**لکه: د (خوړل) کلمه د يوې رېښې په شکل په لاندې مثالونو کې وګورئ:**

**خوړلی، وخوړ، خوړلی و، خوړلې ده، خوړونکې.**

**لکه څنګه چې رېښه د فعل اصل او بنسټ جوړوي، په نومونو کې هم رېښه اصل دی او له وندونو سره نوې کلمې جوړولای شي.**

**د مثال په توګه:**

**کله چې د (کار، زړه او فکر) تر کلمو مخکې يا وروسته وندونه راوړل شي، نوې کلمې ورځينې جوړيږي چې په دغو نوو کلمو کې د (کار، زړه او فکر) نومونه اسمي رېښې بلل کېږي.**

**کار ..................... بېکاره، ناکار، کارګر، کارونه او نور.**

**زړه..................... بې زړه، نازړه، زړور، زړه سوی او نور.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې په وار سره متن ولولي او په مطلب دې خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې د فعل ريښه تعريف، په مثالونو کې څرګنده او په کتابچو کې دې وليکي.
- زده کوونکي دې په لاندېنيو کلمو کې ريښه په نښه کړي.

مخونه، مخکې، مختاړي، مخور، بې مخي، بې مخه.

سرور، بې سره، له سره، سردار، سره.

- زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي، د متن لغتونه دې لومړی معنا او بيا دې په جملو کې وکاروي.
- څو زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، څو نوي مثالونه دې پر تختې وليکي او په هغو کې دې د فعل يا نوم ريښه وښيي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| بنسټ | تهداب |
| نازړه | ډارن، بې هوډه |

## ښرګندونه:

وندونه: هغه ناخپلواکې کلمې دي چې په فعلونو او نومونو کې تر ريښې مخکې يا وروسته راشي.

لکه: (بې فکره) يا د (بې واکه) په کلمو کې، (بې) مختاړی بلل کېږي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې څو فعلي او اسمي ريښې په نوو مثالونو کې پيدا بيا دې په خپلو کتابچو کې وليکي.

# کوچنیان

**موخه**: د متن لوستل، لیکل ، د لوست په مطلب او مفهوم پوهېدل.





**پوښتنه**:

ستاسو په فکر ماشومان کوم ښه صفتونه لري؟

**اروابښاد گل پاچا الفت په خپل مشهور کتاب ((غوره نثرونه)) کې لیکلي دي:**

**(( ..... زه په ماشومانو کې ځینې داسې لوی خویونه او ستر صفتونه وینم چې هغه په لویانو کې نشته. هغه کسان چې ځانونه ورته لوی او زورور ښکاري، د خپلې کینې او بغض په وړاندې ډېر کمزوري دي. زه او ته که هر څومره لوی شو، قوت ومومو، په خپلو غلیمانو رحم نشو کولای. په زورورو باندې قهر او غضب ډېر زورور دی. مگر ماشومان دغه راز نه دي. د دوی په زړونو کې که عناد او کینه پیدا شي، ډېر ژر یې له منځه وړی شي. یوه شیبه وروسته له هغه چا سره مینه کوي چې مخکې یې ورسره منگولې لگولې.**

**دا کار لویان نشي کولای . لوی خلک د خپل قهر او غضب په وړاندې ډېر واړه او کمزوري دي.**

**دا زور او قوت د کوچنیانو په برخه رسېدلی دی چې د کینې او عناد اور مړ کړي او دا جهنم په گلزار بدل کړي)).**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې په وار سره متن ولولي او د هغه مطلب دې په لنډ ډول ووایي.
- زده کوونکي دې لاندې کلمې په مناسبو جملو کې راوړي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| الف: | لویان | د. | عناد |
| ب. | بغض | هـ. | کمزوری |
| ج. | زورور | و. | مینه |

- دوه تنه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي او د متن جملې دې یو بل ته د املا په توگه ووایي.
- زده کوونکي دې په متن کې متضادې کلمې پیدا او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.
- څو تنه زده کوونکي دې د ټولگي مخې ته راشي، په دې اړه دې خبرې وکړي چې موږ څنگه کولای شو له هر چا سره د خپل قهر او غضب مخنیوی وکړو؟

| لغت | معنا |
|---|---|
| عناد | کینه |
| غوره | په زړه پورې |
| جهنم | دوزخ |
| بُغض | کینه |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د متن په پوهېدو سره په دې اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي چې: موږ څنگه کولای شو د کوچنیانو په شان له خپلو زړونو څخه کینه او عناد لرې کړو؟

# د پاک چاپېريال گټې

**موخه**: د متن لوستل، ليکل، پاك چاپېريال په ارزښت او گټو پوهېدل او د چاپېريال د پاك ساتلو د روحيې پياوړتيا.





**پوښتنه**:

آيا تاسو کله د چاپېريال کلمه اورېدلې او په معنا يې پوهېږئ؟

**زموږ خوا و شا ټول شيزونه، لکه: هوا، اوبه ځنگلونه، کروندې، دښتې، غرونه او نور... د چاپېريال په نامه يادېږي. چاپېريال په ټولو وگړو پورې اړه لري، ځکه انسان پکې ژوند کوي او گټه ترې اخلي.**

**څومره چې يو چاپېريال پاک او ښکلی وي، په هماغه اندازه ژوند په زړه پورې او خلک له روغتيا څخه برخه من وي.**

**څرنگه چې له چاپېريال څخه ټول انسانان گټې اخلي، ښېرازي او ساتنه يې هم په ټولو وگړو پورې اړه لري. موږ ټولو او په تېره ځوانانو ته په کار ده چې د هېواد هره برخه خپل گډ کور وبولي او د هغه حفاظت او پاک**

**ساتل خپله ملي دنده او مسوولیت وګڼي او له خپل چاپېریال څخه سمه او مناسبه ګټه واخلي.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي متن دې ولولي او د هغه په مطلب دې خبرې وکړي.
- دوه دوه تنه زده کوونکي دې په خپلو منځو کې لوستل شوی متن یو بل ته املا وواییي.

- لاندینۍ کلمې دې په جملو کې وکاروي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي:
(مسوولیت، وګړي، حفاظت، دنده)
- زده کوونکي دې د پاک چاپېریال د ګټو په هکله یوه لنډه مقاله ولیکي.
- زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او په دې اړه دې خبرې وکړي چې موږ ولې پاک چاپېریال ته اړتیا لرو؟

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| وګړي | خلک |
| دنده | وظیفه |
| برخه من | د برخې څښتن |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د هېواد په اوسني حالت کې د پاک چاپېریال په اړه ځو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

## یو څلوېښتم لوست

# نشه يي توکي

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د نشه يي موادو په اغېزو او زیانونو پوهېدل او له هغو څخه د ځان ساتنې د روحيې پیاوړتیا.





**پوښتنه**:

آیا تاسو نشه يي توکي پېژنئ او د هغو په زیانونو پوهېږئ؟

**زموږ په چاپېریال کې داسې توکي شته چې ځانته غذايي ارزښت لري لکه: مېوې، سابه، غوښې او نور چې د ژوند د پایښت، روغتیا او سوکالۍ لامل کېږي. داسې توکي هم موجود دي چې نه یوازې غذايي او روغیتايي خاصیت نه لري، بلکې ډېر ناوړه او وژونکي هم دي. لکه: نسوار، سګرټ، چرس، بنګ، شراب، تریاک، هېروین، او نور.**

**هغه انسان چې یو وخت روغ رمټ او د خپلو کړو وړو له امله په خپله ټولنه کې د درناوي او باور وړ وي، د دغو نشه يي توکو په کارولو سره د خپل ژوند ټول نعمتونه او ښېګڼې له لاسه ورکوي.**

**دا کسان ناروغ، کمزوري، په هر ځای کې پراته او له خپلو کورنیو څخه جلا شوي او ناوړه ژوند لري. په نشه روږدي کسان ورو ورو خپله روغتیا له لاسه ورکوي او په ډول ډول ناروغیو، لکه: د بدن پر کمزورۍ، د زړه او د سږو په سرطان اخته او په پای کې يې د مړينې سبب ګرځي.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې په وار سره متن ولولي او د هغه مطلب دې په ساده وینا بیان کړي.
- دوه دوه تنه زده کوونکي دې د متن جملې یو بل ته املا ووایي.
- زده کوونکي دې په خپلو ډلوکې د نشه یي توکو د بدو اغېزو په هکله څو کرښې ولیکي او بیا دې یو تن د تختې مخې ته راشي او نورو ته دې ولولي.
- زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي او په دې اړه دې خبرې وکړي چې: څنگه کولای شو له دغو تباه کوونکو توکو څخه خپل ځانونه او د کورنۍ غړي وساتو.

| لغتونه | معناوي |
|---|---|
| چاپېریال | محیط |
| کړه وړه | چارې اوعملونه |
| روږدی | آموخته اوعادت |
| سوکالي | آسوده گي |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د نشې د تباه کوونکو اغېزو په باب د خپلو کورنیو له غړو سره خبرې وکړي او بیا دې څو کرښې په دې هکله په خپلو کتابچوکې ولیکي.

# د ځمکې په سطحې کې بدلونونه

**موخه**: د متن لوستل، ليکل او په دې وپوهېږي چې د ځمکې پرمخ او منځ کې بدلونونه هم منځ ته راځي.





**پوښتنه**:

آيا تاسې د ځمکې د بدلون په هکله  څه فکر کولای شئ؟

**د ځمکې پر مخ د بېلا بېلو لاملونو له امله څو ډوله بدلونونه رامنځ ته کېږي. يو ډول يې هغه بدلونونه دي چې په تدريجي ډول د ډېرو کلونو په اوږدو کې د باد، باران او د سيندونو د اوبو له امله منځ ته راځي. په تېره هغو خاورينو سيمو کې چې ونې او بوټي ونلري.**

**بل ډول يې ناڅاپي بدلونونه دي چې لاملونه يې طبيعي آفتونه، لکه: اورغورځونې، زلزلې، سېلابونه، ځمکې ښويېدنې، اورلګېدنې، طوفانونه او نور دي. بايد وويل شي چې د خوړونو او سيندونو په غاړه او شاوخواوو کې د کورونو جوړول، کارکول يا لوبې کول ډېر خطرناک دي، ځکه په داسې ځايونو کې له تېزو بارانونو سره د سېلابونو د راتلو امکانات ډېر زيات وي او سېلاب هغه آفت دی که په مخ کې يې کورونه، زراعتي ځمکې،**

**انسانان، څاروي یا هر څه برابر شي له منځه یې وړي.**



**فعالیتونه:**

- څو تنه زده کوونکي دې متن ولولي او د هغه په مطلب دې خبرې وکړي.
- دوه دوه تنه زده کوونکي دې د متن جملې یو بل ته املا ووایي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.
- زده کوونکي دې د ځمکې د سطحې د بدلونونو په اړه که څه اوریدلي وي نورو ته دې ووایي.
- دوه دوه تنه زده کوونکي دې له یو بل سره په دې اړه مشوره وکړي چې کوم شیان د ځمکې په سطحې کې د بدلون لامل کېدلای شي، بیا دې خپلې لیکل شوې کرښې نورو ته ولولي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| لاملونه | علتونه |
| بدلونونه | تغییرات |
| اورغورځونې | آتشفشان |
| خاورینه | خاکي |



**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې په ځمکه کې د بدلون په هکله چې څه فکر کولای شي په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.

# د کار ارزښت

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د کار په ارزښت پوهېدل او د کار کولو د روحیې پیاوړتیا.





**پوښتنې**:

آیا تاسې له کار کولو سره مینه لرئ؟ کوم ډول کارونه مو خوښېږي؟
کار کول زموږ روغتیا ته هم ګټه لري؟

**د اسلام ستر پیغمبر حضرت رسول اکرمﷺ داسې لار ښوونه کړې ده:**
**((خپله روزي د کار او زیار په وسیله وګټئ، سوال مه کوئ.))**
**له حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چې یو انصاري حضرت محمدﷺ حضور ته راغی. ویې ویل: ((ای د الله حبیبه! ماته یو څه راکړه.)) رسول اللهﷺ وفرمایل: چې ((په کور کې څه لرې؟)) سوالګر وویل: یوه شړۍ لرم او یوه د لرګي کاسه چې اوبه په کې څښو. حضرت محمدﷺ ورته وفرمایل: ((دواړه راوړه!)) هغه دواړه راوړل.**
**حضرت محمدﷺ وفرمایل: ((دا دواړه څوک اخلي؟)) یوه سړي وویل زه یې په یوه روپۍ اخلم. پیغمبرﷺ بیا وفرمایل: ((څوک یې له دې څخه ګران اخلي؟)) بل سړي وویل زه یې په دوه روپۍ اخلم.**
**رسول اللهﷺ هغه شیان ورکړل او روپۍ یې انصاري ته ورکړې. ویې ویل: ((په یوې روپۍ خوراکي شیان واخله او په بله روپۍ یو تبر واخله او ماته**

**يې راوړه!)) انصاري تبر راوړ او حضرت محمدﷺ په مبارکو لاسونو په خپله هغه ته لاستی ور واچاوه. بیا یې وفرمایل: چې ځه لرګي وهه او خرڅوه یې. پنځلس ورځې دې ونه ګورم.**

**انصاري لرګي وهل او هغه یې پلورل. پنځلس ورځې وروسته حضور ته راغی چې حال یې ډېر ښه شوی و. حضرت محمدﷺ وفرمایل: ((دا کار تاته له سوال نه غوره دی، ځکه چې سوال به د قیامت په ورځ ستا پرمخ تور ټکی وي.))**



**فعالیتونه:**

- ځو تنه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، متن دې ولولي او دهغه په مطلب دې خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي
  تورټکی، خرڅول.
- زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي او د متن یوه یوه جمله دې د املا په توګه ولیکي.
- زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي او د کار د ارزښت په اړه دې یوه یوه جمله پرتختې ولیکي.

| **لغتونه** | **معناوې** |
|---|---|
| تورټکی | عیب او شرمندګي |
| مبارکو | بختورو، پاکو، نېکمرغو، له برکت څخه ډک |



**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د کار د اړتیا او ارزښت په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# بشر پالنه

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل، د بشر پالنې په معنا او مفهوم پوهېدل او د بشر پالنې د روحيې پياوړتيا.





**پوښتنه**:

ستاسو په فکر بشر پالنه څه ته وايي؟

**انسان په ټولنه کې يو زيار کښ موجود دی او د بشري ستونزو د لرې کولو لپاره د نه هېرېدونکو خدمتونو وياړ لري. بايد د ژوند په ټولو چارو کې له يو بل سره مرسته، همکاري او د ستونزو په وخت کې خواخوږي ولري.**

**څنګه چې موږ انسانان يو، نو ښايي چې له انسانانو سره مينه او محبت خپله بشري فريضه وبولو او په دې عمل وکړو، چې هر انسان د عزت او درناوي وړ دی.**

**انسان ته ښايي يوازې د خپلې سوکالۍ او نېکمرغۍ په فکر کې نه وي، بلکې پر نورو هم دا پيرزوينه ولري.**

**وګورئ رحمان بابا دبشر پالنې دا لوړ احساس په څومره خوږوالي سره په دې بيت کې ځای کړی دی:**

**هغه زړه به له طوفانه په امان وي**
**چې کښتۍ غوندې د خلکو باربردار شي**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې متن ولولي او په دې مطلب دې خبرې وکړي.
- دوه دوه تنه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي او متن دې یو بل ته املا ووایي.
- زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې په دې اړه چې (مور، ښنګه کولای شو د رحمان بابا د بشر پالنې له روحیې څخه پیروي وکړو.) څو کرښې ولیکي او بیا دې یو تن د تختې په مخکې نورو ته ولولي.
- څو زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او په دې اړه دې خبرې وکړي چې: (زموږ له کومو کړو وړو څخه بشر پالنه څرګندېدلای شي).

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| پېرزو | لورینه |
| خواخوږي | همدردي |
| درناوی | درنښت |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د بشر پالنې په هکله یوه لنډه مقاله ولیکي.



# د وطن ترانه

**موخه**: د متن لوستل، لیکل او د هېوادنۍ مینې د روحیې پیاوړتیا.





**پوښتنه**:

ستاسو په فکر وطن ولې په هر چا ګران دی؟

دا وطــن ودان وطــن　　　　دا د لــوی افـغان وطــن

دا پــر موړه ګــران وطــن

خـاوره د غېرت ده زلزلـې لـري طــوفان لـري

غرونـو کـې بازان لــري

شــور يــې پـه سيندونـوکـې　　　　تـاو يـې لــويـو غرونوکې

مينه يې پــه زړونوکــې

خيژي له سينې، د هر افغان ولولې لري

بـــلــې يــې لمبې لـري

اوســـي افــغانان پکې　　　　نــسل اتــلان پـكـــې

واړه سربـازان پـكــې

څــاري يــې د غـرو او چــت سرونـه لـه آسـمان سره

نــنـګ او لــه ايـمان سره



**فعالیتونه:**

- زده کوونکي دې ترانه په ډله ییزه توګه په لوړ آواز ولولي.

- د ترانې مطلب دې په نثر واړوي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

- زده کوونکي دې لاندې لغتونه په جملو کې وکاروي.

سیندونه، تاو، لمبې، بازان، اتلان

- زده کوونکي دې په وار سره د وطن دوستۍ او د وطن د ساتنې په هکله چې څه مسوولیت لرو او څنګه یې ترسره کولای شو، خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| ولولې | شور اوغوغا |
| وطن | ټاټوبی یا د اوسیدو ځای |
| باز | باښه |
| سربازان | سرښندونکي |
| اتلان | قهرمانان |
| څاري | څارنه یې کوي، یا ساتنه یې کوي |

# د پوهنې ترانه

پوهنه ده رڼا — وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم — زمونږه رهنما

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږه رهنما

وطن زما یې ځان — له تانه شم قربان
ته وینه د افغان — ته لوړ په ټول جهان

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږه رهنما

اباد او سې اباد — وطنه ته شې ښاد
مونږ سرښندو په تا — او ساتو دې ازاد

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږه رهنما

ته کور یې هم مې ګور — ته پلار یې هم مې مور
ته زړه یې د اسیا — زما د سترګو تور

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږه رهنما

ته ننګ یې د اریا — او تاج یې د یما
ځاریږمه له تا — افغانستان زما

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږه رهنما

محمد مُعین مرستیال